

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




**د پوهنې وزارت**

# تاریخ

## یوولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ. ش

## د کتاب ځانګړتیاوې

---

**مضمون:** تاریخ

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د تاریخ دیپارټمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي

**ټولګی:** یوولسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

---







## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر
دکتور محمد میرویس بلخي





# د مطالبو لړ لیک

## د مطالبو لړ لیک

| عنوانونه | مخونه |
| --- | --- |






# لومړی څپرکی

## افغانستان او اسلام

تېر کال  په لسم ټولګي کې د اسلام له تاریخ سره آشنا شوئ. په دې څپرکي کې به په منځنیو او نویو پیړیو کې د افغانستان له تاریخ سره په لنډه توګه بلدتیا ترلاسه کړئ.

د شاه دو شمشیره (علیه الرحمه) جومات





# د دې څپرکي موخې

هيله کېږي چې زده‌کوونکي به د دې څپرکي په پای کې لاندې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخو ته ورسيږي:

- د اسلام د ظهور په در شل کې به د افغانستان له عمومي وضعې، افغانستان ته د اسلام د سپېڅلي دين راتګ او خپرېدل، افغانستان د امويانو په دوره کې، له امويانو څخه عباسيانو ته د واک انتقال، افغانستان د عباسيانو په دوره کې او د مسلمانانو او د افغانستان د خلکو په دوه اړخيزو اغيزو خبر شي.
- په افغانستان کې به د مسلمانانو د بري لاملونه او همدارنګه د ځينو اميرانو پر وړاندې د افغانستان د خلکو د پاڅونونو دلايل وپيژني.
- د تاريخي نقشو او اطلسونو څخه به کار واخېستلای شي.
- د اسلامي او تاريخي هويت او د پوهې د لاسته راوړلو سره به مينه پيدا کړي.

# افغانستان او اسلام

## د افغانستان عمومي وضع د اسلام د ظهور په درشل کې

په دې لوست کې به د اسلام د ظهور په وخت کې د افغانستان د وضعې او حالت له څرنګوالي او هغو لاملونو سره په لنډه توګه بلدتیا ومومئ چې اسلام ته زموږ د هېوادوالو د لېوالتیا سبب ګرځېدلي وو.

د اسلام د ظهور په وخت کې د افغانستان شرایط پایداره نه وو او سیاسي، اقتصادي او ټولنیز تینګښت یې نه درلود چې په لنډه توګه به د ځینو برخو په تشریح پیل وکړو:

**۱- سیاسي وضع**

د شپږمې میلادي پېړۍ په دویمې نیمایي کې هغه وخت چې د یفتلیانو دولت مخ په ځوړ روان شو، د ایراني ساسانیانو او د ماوراءالنهر د ترکانو لاسوهنه په ترتیب سره د افغانستان شمال لوېدیځ، شمال او شمال ختیځ ته وغځېدله او تسلط یې وموند. پاتې هېواد په ملوك الطوایفي حکومتونو ووېشل شو او ډېر سیمه ییز حکومتونه رامنځته شول. د بېلګې په توګه په غور کې د سوریانو کورنۍ، په بامیانو کې د شېرانو، په کابل کې د رتبیلانو او په غزني او ګردیز کې د لاویکیانو سیمه ییز حکومتونه په پښو ودرېدل.

**۲- اقتصادي او ټولنیزه وضع**

د اسلام د ظهور څخه پخوا افغانستان د سوداګریزو مالونو د وړلو او راوړلو لاره وه. د ورېښمو مشهوره لاره له دې سیمې څخه تېره شوې وه او سوداګریز کاروانونه به له چین او هند څخه ایران، عراق، ترکیې، لوېدیځو هېوادونو او ختیځ روم ته رسېدل، همدارنګه د کرنیزو ځمکو، پریمانه اوبو، مساعدې هوا او انساني قوې شتون د اقتصادي وضعې د پرمختګ لپاره ښه زمینه برابره کړې وه. خو د اسلام د ظهور په مهال د یوه سیاسي او اداري مرکزیت د نشتوالی له کبله شرایط د ویجاړۍ لوري ته مخه کړه، چې کله به یوه سېمه او کله به بله سیمه د یرغل او چور لاندې راتله.

له بلې خوا، د ټولنې زیاتره وګړي په کرنې، مالدارۍ او کسبګرۍ بوخت وو، د خپلو عایداتو یوه برخه به یې د عبادت ځایونو ساتونکو ته ورکوله او دغه کړنلاره د دوی د زیاتې بېوزلۍ سبب کېده.

همدارنګه د وخت په تېرېدو سره د ځینو بزګرو ځمکې د لویو ځمکوالو لاسته ورغلې، یوې ډلې ته د شتمنۍ لاسته ورتلل او د بلې ډلې بېوزلي د دې لامل شو چې سخته مالي او اقتصادي نا انډولي رامنځته شي.

**۳- پوهنیزه، ادبي او دیني وضع**

دین چې د یوې ټولنې د یووالي پیاوړی لامل شمېرل کېږي، په افغانستان کې یې د اسلام د پیداښت په درشل کې د ټولنې د خلکو په باور کې خپل حیثیت له لاسه ورکړ او په خپله د بې اتفاقی سبب وګرځېد. څرنګه چې د هېواد لوېدیځه برخه چې د ساسانیانو تر سیاسي، ادبي او دیني نفوذ لاندې وه، نو زردشتي دین ډېر پلویان درلودل خو په مرکزي سیمو، زابلستان، د کابل سیند وادي (ګندهارا)، د ارغنداب وادي د هندوکش د غرونو تر لړیو او د هېواد تر شماله او همدارنګه د سند تر څنډو پورې بودایي او برهمني دینونه دود وو. لمر لمانځنې او بت لمانځنې هم د هېواد په شاو خوا کې پیروان درلودل.

د یادو شوو دینونو څخه هر یو د ځانګړو عبادت ځایونو او اړوندو ادارو لرونکي وو. چې په دې کې زیاتره ساتونکو او راهبانو کار کولو او مزدوري یې اخیستله.

د هېواد د جغرافیوي موقعیت له مخې چې د جګو غرونو د سلسلو په واسطه په ډېرو درو ویشل شوی و هره دره د ځانګړې ژبې او لهجې لرونکې وه.





### څرګندونې

۱- يفتلي يا هپتالي په چيني ژبه کې (يي- تي- لي- دو)، په يوناني او رومي ژبو کې (افتهاليت)، په پهلوي، عربي اوفارسی کې (هيطل يا هيفتا ل يا هياطله) او په هندي او سانسکريټ کې (شوته هونه) بلل شوې ده.

۲- ماوراءالنهر د امو سند په شمال کې پراخه سيمه ده چې د نوموړی سند او سير دريا تر منځ پرته ده. د بخارا، سمرقند، خوقند،خجند او نور ...... مهم ښارونه په دې سيمه کې موقعيت درلود او اوس د ازبکستان د هېواد په قلمرو کې شامل دی.

لکه څرنګه چې د اسلام د ظهور په وخت کې ډېرې ژبې لکه پښتو، دري، تخاري، سانسکريت او... د هېواد په بېلابېلو برخو کې دود وې.

د (۲۱- ٤۰ ق/ ٦٤۲- ٦٦۱ م) کلونو ترمنځ د افغانستان خلکو رياضي، نجوم او طب ته لاس رسی درلود او د يوناني او ساماني دوديزو علومو او هندي فلسفې سره هم بلد وو.

له ټولنيز پلوه هم د مشرې او رعيت طبقو شتوالی او د وينې او نژاد په اصالت باندې باور خلک له ستونزو سره مخ کړي وو. د کورنی جوړښت او بنسټ پياوړې پايه نه درلوده او ښځې له خپلو انساني حقوقو څخه محرومې وې.

شرايط همداسې وو چې د اسلام دين غړ زموږ هېواد ته راورسېد. هغه دين چې ټول يې د يوه خدای ﷻ له لورې، يووالي، خپلواکی، عدالت، وروروولی او برابرۍ ته را وبلل.

د اسلام دين د مجاهدينو او دعوتګرو لومړنی ډله د دويم خليفه په زمانه (۲۲ ق/ ٦٤۳م) کې زموږ د هېواد پولو ته ورسېده او د اسلام د سپيڅلي دين د خپراوي لامل شوه.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د لاندنيو څلورو موضوعاتو په هکله بحث وکړي او له خبرو اترو وروسته، د موضوعاتو پايلې دې د ډلې يو غړی له نورو سره شريکې کړي.

د اسلام د ظهور په درشل کې د افغانستان سياسي وضع،

د اسلام د ظهور په درشل کې د افغانستان ټولنيزه وضع،

د اسلام د ظهور په درشل کې د افغانستان اقتصادي وضع،

د اسلام د ظهور په درشل کې د افغانستان پوهنيزه وضع.



### پوښتنې

۱. د دينونو زياتوالی د ټولنې په يوالي کې څه اغېزه کوله؟ څرګندونې پرې وکړئ.

۲. د اسلام د پيداښت په وخت کې زموږ د هېواد خلکو په کومو ژبو خبرې کولې، ايا تر اوسه هم په هماغو ژبو خبرې کېږي؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

ستاسو په نظر هغه دلايل کوم وو چې زموږ خلکو د اسلام دين سره نژدېوالی وښود؟ يو مطلب برابر کړئ او مخکې له راتلونکي لوست څخه يې په ټولګي کې وړاندې کړئ.





# افغانستان ته د اسلام راتگ او خپرېدل

په دې لوست کې به افغانستان ته د اسلام له راتگ او خپرېدو سره بلد شئ. او همدارنګه هغه لاملونه به هم وپېژنئ چې د هېواد په بېلابېلو برخو کې د دې اسماني دين د نفوذ لامل وګرځېدل.

(۱۵۰۰) کاله مخکې افغانستان ته د اسلام راتگ د پام وړ او د تاريخ مهمه پېښه بلل کېږي. افغانستان ته د اسلام راتگ او پايښت، دغه هېواد له يوې دورې څخه يوې بلې تاريخي دورې ته بوتلو او پرته له ځينو لرغونو عناصرو لکه ژبه او ځينې دودونه چې په هر وخت کې وو په خپل حالت پاتې شول، نور د هېواد ټول کلتوري، اقتصادي او ټولنيز جوړښتونه له بنسټيزو بدلونونو سره مخ شول او يا په بله وينا، اسلام زموږ هېواد ته نوی روح او هويت وبخښه نو اسلام په افغانستان کې څنګه خپور شو؟

## د اسلام خپرېدل

هغه ګړنديتوب او ثبات چې د مسلمانانو له فتوحاتو سره همغاړی و، د نړۍ په تاريخ کې ساری نه لري، نو له دې کبله پر ځای به وي چې دغه کار يوه الهي معجزه وبولو؛ ځکه د دې بريدونو او فتوحاتو رښتينی لامل او اصلي محرك هغه اسماني پيغامونه او لارښوونې وې چې د نوي دين په قالب کې د حضرت محمد ﷺ له خوا مسلمانانو ته ورسول شول.

په (۱۲ ق) کال کې د مثنی تر قوماندې لاندې چې د حارث زوی و د لومړي ځل لپاره د جزيره العرب په ختيځو سيمو باندې يرغل وکړ چې په پايله کې مسلمانانو د فرات سيند په لوېديځه څنډه کې د حيره ښار لاندې کړ. له دې فتحې سره مسلمانانو ته د بين النهرين د فتحې کلی لاسته ورغله.

وروسته له دې مسلمانانو د يوې لسيزې په درشل کې د ساساني ايران د نيولو کار بشپړ کړ او په ځانګړې توګه د نهاوند جګړه (نهاوند د همدان په سويل او د اوسني ايران مرکز ته نژدې يو ښار دی). په (۲۱ ق) کال کې مسلمانانو د ساساني ايران لښکرې او دولت په بشپړه توګه له منځه يوړ چې مسلمانانو دغه سوبه د فتح الفتوح په نامه ونوموله.

نو په دې توګه هغه حايل چې د خراسان او عربو مسلمانانو ترمنځ و، له منځه لاړ او اسلامي مجاهدينو خپل ځانونه د دې سيمې پولو ته ورسول او د خليفه فرمان ته سترګې په لار پاتې شول.

دغه فرمان په(۲۲ هـ .ق.) کال کې د حضرت عمرﷺ له لورې صادر شو، مسلمانانو د احنف بن قیس تر مشرۍ لاندې حرکت وکړ او د اوسني ایران په سویل ختیځ کې د طبس د نیولو وروسته یې د هرات لور ته مخه کړه او دغه ښار یې په زور ونیوه. هغه بدلونونه چې د خلافت په مرکز کې د حضرت عثمانﷺ د ځایناستی په سر رامنځته شول، زموږ په هېواد کې یې د مسلمانانو پرمختګ لږ څه وځنډاوه خو دا ځل د مسلمانانو خلیفه،(عبدالله بن عامر بن کریز) د ختیځو سیمو د فتحه کولو مشر وټاکه او نوموړي په دې برخه کې ډیرې هڅې وکړې.

## یوه څرګندونه

وایي کله چې د لومړي ځل لپاره د عربو او ایرانیانو لښکرې سره مخ شوې دواړو لورو د جګړو له پیل څخه مخ ګرزاوه. په دې موده کې د دواړو لورو استازو په تګ او راتګ کې وو. د دې مذاکراتو له ډلې څخه، په یوه غونډه کې رستم د مسلمانانو له استازي څخه د دوی د موخې په هکله پوښتنه وکړه.

ځواب یې ورکړ:

زموږ موخه، د اسلام خپرېدل دي، چې تر ټولو مهم ارکان یې د خدایﷻ په یووالي او د اسلام د پیغمبرﷺ په نبوت شهادت او همدارنګه د قرآن کریم قبلول دي.

رستم پوښتنه وکړه: نور څه؟

هغه سړي ووېل: د خدایﷻ بندګانو ته دعوت ورکول چې د بندګانو له عبادت څخه د خدایﷻ د عبادت په لور وګرځي.

رستم پوښتنه وکړه: نور څه؟

د مسلمانانو استازي ووېل:

او بل دا چې ټول خلك د آدم او حوا اولاده او ټول له یوه مور او پلار څخه پیدا دي.

عبدالله هغه ښارونه چې له اسلام څخه یې مخ اړولی و، بېرته تسلیم کړل او په ځانګړې توګه د نیشاپور له فتحې وروسته په (۳۰ ق) کـال کې د نوموړي لاره د افغانستان د بېلابېلو ښارونو لوري ته خلاصه شوه. زموږ د هېواد مهم ښارونه لکه هرات، فاریاب، جوزجان، تخار او بلخ د مسلمانانو لاسته ورغلل. د نوموړي تره (عبدالرحمن بن سمره) هم د افغانستان د سویلي سیمو د فتحې کار په غاړه





واخیست او سیستان چې په هغه وخت کې غزنی، زمین داور او کندهار پکې شامل وو ونیول او له هغه ځایه د کابل په لور وخوځېد.

په کابل کې مسلمانان له ډېرو ستونزو او کړاوونو سره مخ شول او کابلیانو د اسلام د لښکرو په وړاندې سخت مقاومت وکړ خو په پای کې یې ماتې وخوړه.

د پام وړ خبره دا ده چې له دې لښکرلیږنې سره یوځای، یو زیات شمېر عربانو په قبیلوی توګه مهاجرتونه وکړل او زموږ د هېواد په هغو سیمو کې مېشته شول چې له جزیره العرب سره یې ورته والي درلود.

سره له دې لومړنیو فتوحاتو، زموږ د هېواد په ځینو برخو کې د مسلمانانو په وړاندې مخالفتونه له منځه ولاړل نشول او په ځانګړې توګه د ځینو بنی امیه و قبیلې د پلویانو چلند د خلکو د ځورېدو او نارامۍ لامل وګرځېد او پاڅونونه یې وزېږول، او په پای کې د یوه پاڅون په ترځ کې چې د ابومسلم خراساني تر مشرۍ لاندې ترسره شو خلافت د امویانو څخه یوې بلې نرمې عربي ډلې یعنې عباسیانو ته چې ځان یې د پیغمبر ﷺ له کورنۍ او د هغه سیاسی نظام وارث باله چې د هغه په واسطه جوړ شوی و، ولیږدیده.

## د مسلمانانو د بریالیتوب دلایل

۱- په پاک خدای ﷻ، د قیامت په ورځ، د اسلام په پیغمبر ﷺ او قرآن کریم باندې پیاوړی ایمان د مجاهدینو د بریالیتوب تر ټولو مهم دلیل ګڼل کېږي، ځکه دې عقیدې دوی ته ډېره لوړه روحیه ورکوله او دوی یې لا زیات فعالیت او خوځښت ته هڅول.

جهاد، شهادت او جنت له معنوي پلوه تر ټولو هغه اساسي ارزښتونه وو چې د دې سبب شول ترڅو مسلمانان په نه تصور کېدونکې توګه له خپل ځانه مېړانه، نه ستړې کېدل او جرئت وښیي.

۲- د مسلمانانو پیاوړې نظامي مشرۍ او له اغیزمنو جګړه ییزو تکتیکونو څخه ګټه اخیستنه او همدارنګه د مجاهدینو ترمنځ د جګړې د مشر د امر منلو روحیه.

۳- سربېره پر دې، مادي انګیزې هم باید له یاده ونه باسو. ځکه د اسلام د قوانینو سره سم د غنیمتونو یو پر پنځمه برخه اسلامي دولت او څلور پر پنځمه برخه د مجاهدینو حق ګڼل کېده.

٤- زموږ د هېواد د خلکو له خوا د اسلام عدالت غوښتنې او مساواتو د شعارونو بدرګه کول، ځکه زموږ خلک د اشرافي نظامونو له شتون څخه ناراضه او تر پزې رسیدلي وو.





٥- د عربو په مقابل لوري کې اداري ضعف او د تیت او پرکې ادارې او مذهبي وضعې شتون په ځانګړې توګه زموږ د هېواد د خلکو ترمنځ، مسلمانو عربو ته دا زمینه برابره کړه، ترڅو ګټه ترې واخلي، ځکه چې په دې وخت کې په افغانستان کې پیاوړې واحد حکومت او یو دین شتون نه درلود چې خلک سره راټول کړي.

٦- د واحدې نظامي مشرۍ نشتوالی او د اسلامي لښکرو پر وړاندې ګډه وړه دفاع د اسلامي مجاهدینو د بریالیتوب بل دلیل شمېرل کېږي.

٧- په اسلامي لارښوونو او تمدن کې د ژوند د بشپړ پروګرام شتون او په سیمه کې د پخوانیو حاکمو ادیانو د ټولنیز په زړه پورې او پراخه پروګرام نشتوالی.

د پورتنیو څوګونو دلایلو او ځینې نورو لاملونو له مخې، اسلامي لښکرې وتوانیدې چې افغانستان یا د هغه وخت خراسان تر خپلې ولکې لاندې راولي.

## پوښتنې



١. ستاسو په نظر کوم دلیل یا دلیلونه وو چې اسلامي مجاهدینو د ختیځ لور ته لښکرکشي وکړه؟

لاندې تش ځایونه په خپلو کتابچو کې ډک کړئ

٢. په کال ....... هجري مسلمانانو د لومړي ځل لپاره د ......... تر مشرۍ لاندې په ایران برید وکړ او په ترڅ کې یې ......... مهم ښار د مسلمانانو تر ولکې لاندې راغی.

٣. اسلامي لښکرې د کوم خلیفه په وخت کې خراسان یا افغانستان ته ورسیدې؟

٤. ستاسو په نظر عربي مسلمانانو ولې له جزیره العرب څخه زموږ سیمو ته کډوال شول؟

٥. د مسلمانانو د خلیفه حضرت ........ فرمان په ......... کا ل کې د خراسان پر لور د مجاهدینو د پرمختګ په هکله صادر شو.



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې په افغانستان کې د اسلامي مجاهدینو د بریالیتوب د لاملونو په هکله یوه مقاله ولیکي.

# افغانستان د امویانو په دوره کې

په دې لوست کې به د امویانو د ادارې سیستم له څرنګوالي او په هغه وخت کې د افغانستان د اقتصادي او سیاسي وضعې په اړه معلومات ترلاسه کړو.

امویانو په ٤١ ق / ٦٦١ م. کال کې اسلامي خلافت ترلاسه کړ. دوی ٩٠ کاله په اسلامي نړۍ واکمني وکړه او کابو د افغانستان په ډېرو سیمو واکمن شول.
دوی چې د قبیلوی نظام بنسټ تر یوه حده ساتلی و د فتحه شوو سیمو د ساتلو لپاره یې د قوم د متنفذو خلکو څخه کار اخیسته چې نوموړي مشران به د ډېر واک خاوندان وو.




د امویانو په دوره کې زموږ هېواد د وریښمو د لارې، پراخه کرنیزو ځمکو، بهیدونکو سیندونو، مساعدې هوا او انساني قوې په لرلو سره د ښه اقتصادي وضعیت لرونکی و. خو د امویانو د

دربار د مصارفو زیاتوالې چې د مالیاتو له لارې تامینیدل، نه یوازې دا چې د کسبګرو او بزګرانو د نارامۍ لامل وګرځېدل بلکې د ډېرو ځمکو لرونکي هم ناراضه شول، ځکه چې د ټولنې د لوړې طبقې سیاسي حقوق هم محدود شول او د بزګرانو د ورځنیو مالیاتو زیاتوالی د سیمه ییزو اشرافو د عوایدو د کمښت لامل وګرځېدل. په دې توګه د اموي دولت د واکمنۍ په مهال د خراسان کلني مالیات څلویښت مېلیونه درهمو ته ورسیدل.

د عربو په منځ کې هم د اموي دولت له سیاست څخه نارضایتی زیاتې شوې. د قریشو یوه بله څانګه عباسیان وو چې له امویانو سره به یې سیالي کوله، د عباسیانو پلویان ورځ په ورځ زیاتېدل. ځکه چې دوی به خلکو ته وعدې ورکولې چې د بریالیتوب په صورت کې به د مالیاتو اندازه او بېګاري کارونه راکم کړي. سیمه ییزو ځمکوالو ته به یې هم وعده ورکوله چې د دوی سیاسي حقوق به په پام کې نیسي او دوی ته به د دولت په اداري کې برخه ورکوي.

په دې ترتیب د امویانو او عباسیانو ترمنځ مخالفت زیات شو، څرنګه چې په خراسان کې د اسد بن عبدالله ۱۱٤- ۱۱۷ ق / ۷۳۵- ۷۳۸ م. په دورې کې د عباسیانو د پلویانو له ډلې څخه څو پټ کسان ونیول شول، لاس اوپښې یې پرې او غوڅې شوې. د امویانو بل والي نصر بن سیار هم په خراسان کې د عباسیانو پلویان په سخته توګه وځارل. خو هېڅوک ونه توانېدل چې په زور او شکنجه د خلکو د نارضایتۍ مخه ونیسي او د هرې ورځې په تېریدو سره د خلکو نارضایتي زیاتېدله.

د امويانو شجره



## د ولسي پاڅونونو لاملونه

د بني اميه د خلافت په دوره کې نارضايتي زمونږ په هېواد کې زياته شوه. دوی حاکم، قاضي او امام د عربي توکمه خلکو څخه ټاکل. دولتي مهمې دندې په عربي توکمه خلکو پورې اړه لرلې. سياسي مخالفين په سختۍ سره ځپل کېدل. اسلامي ساده دربار په مجلل دربار بدل شو. د دربار او لښکر د لګښتونو زياتوالی چې د ماليې له لارې به اخيستل کېده او همدارنګه بېګار اجباري کارونه د دې لامل وګرځېدل چې د خلکو د ېبوزلۍ کچه لوړه او په پای کې د زياتې ناراضايتۍ لامل وګرځي.

زمونږ خلکو د ځينو متعصبو له خوا د بې عدالتۍ او له توپيره ډک چلند ته په کتو سره، په داسې حال کې چې په اسلام يې ټينګ ايمان درلود او د هغه په پراختيا کې يې قربانۍ ورکړې وې خو د نومونړو کسانو د تسلط پر وړاندې يې پاڅون وکړ، لکه د ابومسلم خراساني پاڅون.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې له لاندې موضوعګانو څخه يوه وټاکي، خبرې اترې دې پرې وکړي او بيا دې يو تن په لنډه توګه د خپلې ډلې معلومات نوروته وړاندې کړي.

- د امويانو په دوره کې زمونږ د هېواد سياسي وضعيت،
- د امويانو په دوره کې زمونږ د هېواد اقتصادي وضعيت،

## سوچ وکړئ او ځواب ورکړئ

١- د امويانو په دوره کې د ماليانو او بيګاري د زياتوالي لاملونه څه وو؟ په لنډه توګه يې واضح کړئ.

٢- د عربو په وړاندې د افغانستان د خلکو د پاڅون اساسي علتونه په ګوته کړئ.

٣- بيګار او حشر يو تر بله څه توپير لري؟ په دې هکله څرګندونې وکړئ.

٤- اموي واليانو اسد او نصر په خراسان کې د خپلو سياسي مخالفينو سره څه وکړل؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

ستاسو په آند د افغانستان د هغو ولسي پاڅونونو لاملونه چې د عباسيانو په ګټه تر سره کېدل څه وو؟

په دې هکله يو مطلب برابر کړئ او له اجازې وروسته يې د ښوونځي په دېوالي جريدې کې وځړوئ.

# له امویانو څخه عباسیانو ته د واک لیږد

په دې لوست کې به زده کړو چې واک څه ډول له امویانو څخه عباسیانو ته ولیږدیده او په دې برخه کې د ابومسلم خراساني او د غوري مشرانو ونډه څه وه؟

## ابو مسلم خراسانی او د واک په لیږد کې د هغه ونډه

عبدالرحمن چې په ابو مسلم ملقب و، د ماشومتوب د دورې نوم یې (بهزادان) او د پلارنوم یې بنداد هرمزد و. نوموړی په ۱۰۰ ق / ۷۲۱م. کې د سفیدنج (یا سپید دژ چې د جوزجان د انبار له مضافاتو څخه دی) په کلي کې زیږیدلی دی. په لومړي سرکې یې تحصیل ته مخه کړه او عربي ژبه یې زده کړه. د ژوند په ترخو شیبو کې یې غم او په خوږو کې یې خوښي نه ښکاره کوله. په ۱۹ کلنۍ کې یې د سیاست ډګرته و دانګل. د سلیم عقل، د هېواد پالنې احساس او پیاوړی عزم په لرلو سره ډېر په بیړه د ولسي فعالیتونو په سرلاري او مخکښ بدل شو. نوموړي په ۲۳ کلنۍ کې کوفې ته سفر وکړ، په مکه کې یې له ابراهیم عباسي سره ولیدل او د بني عباس له پټ ګوند سره یې اړیکې ټینګې کړې. څه وخت چې هېواد ته راستون شو، د علوي سیدانو یحي بن زید له شهادته وروسته یې په خراسان کې د امویانو په وړاندې د پاڅون مشري په غاړه واخیسته. د پاڅون په لومړیو ورځو کې ډېرې ډلې له ده سره یو ځای شوې، تر هغه پورې چې د (۱۲۶ ق / ۷۴۷م) کال په کوچني اخترکې د سفیدنج په کلي کې یې د امویانو بیرغ کوز او د عباسیانو تور بیرغ یې پورته کړ.

د ابو مسلم د دعوت په پایله کې هم د خراسان په خلکو کې او هم د عباسیانو په ملاتړو عربو کې د عباسیانو پلویان زیات شول او په بیړه سره د هرات، بادغیس، تالقان، سرخس، مرو، طوس، غور، نیشاپور، بلخ، تخارستان او د نورو سیمو زیات شمېر خلك د نوموړي مرستې ته حاضر شول. پیاده او سپاره خلك به له ابومسلم سره یو ځای کېدل.

د خراسان والي نصر بن سیار چې له ابومسلم سره یې مقابله کوله ونه توانېد چې د پاڅون کوونکو په وړاندې ټینګ شي. د ابومسلم په واسطه د مروې له نیولو وروسته نصر نیشاپور ته شاتګ وکړ. د ابومسلم ځواکونو د سیار لښکر و ځاره او ماتې یې ورکړه.

د امویانو امیر مروان حمار ډېره هڅه وکړه چې دا پاڅون وځپي. د دې لپاره نوموړي نورې لښکرې برابرې کړې او ابراهیم عباسي یې هم وواژه. خو پاڅون کوونکو څو ځله د مروان ځواکونوته په عراق کې سختې ماتې ورکړې او د امویانو وروستی د خلافت مرکز دمشق یې ترې ونیو او په (۱۳۲ ق / ۷۴۹م) کال یې د کوفې د ښار په جامع جومات کې ابوالعباس سفاح خلیفه اعلان کړ، مروان د مصر په لور و تښتید او هلته ووژل شو.

په دې ترتیب عباسیان د امویانو پرځای واک ته ورسېدل. خو د خلکو او پاڅون کوونکو د ژوند ښه

کولو لپاره يې کوم گام پورته نه کړ او خپلو وعدوته يې شا کړه. ابومسلم د خراسان والي وټاکل شو خو عباسي مشرانو ابومسلم او نورو پاڅون کوونکو ته په ښه سترگه نه کتل نو ځکه يې د له منځه وړلو لپاره لاسونه بډ وهل. ترڅو په (١٣٤ ق/ ٧٥٥م) کال کې ابوجعفرمنصور، ابومسلم په ټگۍ د خلافت مرکز ته وغوښت او مړيې کړ. د ابومسلم وژنې خلک بيا وخوځول، څرنگه چې پاڅون کوونکو په لومړي سرکې د ((سنباد)) بيا د استاد ((سيس)) او وروسته د ((مقنع)) په مشرۍ پاڅونونه پيل کړل.

## امير فولاد او امير کروړ

امير فولاد د ملک شنسپ بن خرنگ له اولادې څخه و، شنسپ د افغانستان په مرکز کې د غورله مشرانو څخه و چې د غور د غرونو په شاوخواکې يې واکمني درلوده. څه وخت چې نوموړي واورېدل چې د افغانستان خلکو د امويانو په وړاندې پاڅون کړی، ده هم پاڅون وکړ او په عباسي گوندکې يې د ابومسلم خراساني سره يوځای د خلکو په راغونډولو پيل وکړ.

امير کروړ د امير فولاد زوی و. په کا ل( ١٢٩ ق/ ٧٦٠م) کې په غور کې امير شو. نوموړی و توانېده چې د غور په شاوخواکې د واکمنۍ لمنه و غوړوي ځکه چې دی يو هوډمن، زړه ور او مېړنی سړی و او دخپل پلار په څېر نوموړي د ابومسلم خراساني سره يوځای د عباسي گوند سره په مرسته کې فعاله ونډه واخيسته. همدارنگه نوموړی يو زړه ور هوډمن او پوخ شاعر و چې لومړنی پښتو شعر ده ويلی دی.

### په ټولگي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دريو ډ لو ووېشل شي او عباسيانو ته د واک د رسېدو په برخه کې دې د لاندې شخصيتونو په اړه له يو له بل سره خبرې اترې وکړي، د خبرو اترو پايله دې د ډلې د يوه غړي له خوا نورو ته وړاندې کړي. (ابومسلم خراساني، امير فولاد غوري او امير کروړ غوري).

### پوښتنې



١- عباسي خليفه ولې ابومسلم ووژه؟

٢- ستاسو په اند، هغه خوځښتونه چې د ابومسلم خراساني له وژنې را منځته شول، څه ځانگړتيا وې يې لرلې؟

٣- له امويانو څخه عباسيانو ته واک څه ډول انتقال شو، په لنډه توگه يې شرحه کړئ.



### له ټولگي څخه دباندې فعاليت

ستاسو په اند، ابومسلم ولې ابوالعباس سفاح واک ته ورساوه او خپله يې د خلافت واگې ترلاسه نه کړې؟

# افغانستان د عباسیانو په دوره کې

په دې لوست کې به د عباسیانو په دورې کې د هېواد په سیاسي، اقتصادي او فرهنګي وضع وپوهېږو، په دې برخې کې به د طاهر فوشنجي او د برمکي کورنۍ په ونډه پوه شئ.




عباسیان د اسلام د پیغمبر د اکا (تره) عباس له اولادې څخه دي او د قریشو د بني هاشمو له قبیلې څخه شمېرل کیږي، د دویمې هجري پېړۍ په وروستیو کې د سیاست ډګرته راووتل او څه وخت چې د خراسان له نا آرامې وضعې څخه خبر شول، په (۱۰۶هـ / ۷۲۲م) کې یې خپل مبلغان او دعوت کوونکي دې سیمې ته ولېږل.

د افغانستان خلکو د دوی د موخو څخه ملاتړ وکړ او د وینې په بیه یې د امویانو په ځای عباسیان په (۱۲۸هـ ./ ۷۴۹م) واک ته ورسول. د عباسیانو دوره (۵۲۳) کاله اوږده شوه اوپه پای کې د مغولو له خوا په (۶۲۸هـ./ ۱۲۴۹م.) کې د دوی خلافت ړنګ شو.

د عباسیانو په دوره کې د افغانستان مالیات کابو له څلوېښتو میلیونو درهمو څخه اویا میلیونو درهمو ته لوړشول، په همدې دلیل په افغانستان کې د بزګرانو ډېر پا څونونه د عباسیانو د مالیاتي زورزیاتیو په وړاندې رامنځته شول. اوپه ځانګړې توګه د هېواد د شمال او لوېدیځو ولایتونو خلکو ډېر کلونه مبارزه وکړه ترڅو لږ تر لږه یې ځانونه د دوی له درانه باره وژغورل.

عباسیانو نه شوای کولی د افغانستان د خلکو له سیاسي او اقتصادي پاڅونونو سره په یوازیتوب برلاسي ترلاسه کړي، نوله دې امله چې په دې برخه کې برلاسي ترلاسه کړې د سیمه یېزو اشرافو او مشرانو مرسته یې ځانته را جلب کړه او د ګډو ګټو ترسیوري لاندې یې خپل تسلط ته دوام ورکړ.

په دې دوره کې په افغانستان کې کرنې او د اوبولګولوسیستم قانوني بڼه ځانته غوره کړه. له هریرود او د هلمند له سیند څخه نوي کانالونه او ویالې وغزیدې. په بلخ کې له (۷۰) زیاتې د اوبو ژرندې او په سیستان کې بادي ژرندې جوړې شوې. په بلخ کې د غلو دانو له ډلې څخه غنم او وریشې کرل کېدې.

په بادغیسات او غور کې مالداری او کرنې پرمختګ وکړ. تالقان او مرغاب د پشمي منسوجاتو د تولید مهم مرکزونه شمېرل کېدل او بلخ د سوداګرۍ عمده مرکز و. د ورېښمو صنعت او کسب هم زموږ د هېواد په ځینو برخوکې دود و. په غور کې او سپنه او مس استخراج کېدل. د غور وسلو په ګاونډیو هېوادونوکې ډېر شهرت درلود. په تخارستان کې سرب او نور فلزونه، د هېواد په شمالي نورو ولایتونوکې اوسپنه، سپین زر او سره زر استخرا جېدل او همدارنګه د پنجشېر سپین زر مشهور و.

**د عباسیانو شجره**



د عباسیانو وروستني خلیفه

د فرهنگ او ادب له پلوه هم د هغه وخت افغانستان د داسې ځلېدونکو شخصیتونو لرونکی و چې د ادبي او پوهنیزو آثارو په پنځولو سره یې خپل نومونه زموږ د هېواد په تاریخ کې تلپاتې کړل. د بېلګې په توګه د موسی بن شاکر خراساني زامن هریو محمد، احمد او حسن او همدا رنګه ابو معشر جعفر بن محمد بلخي په ریاضیاتو کې لوی لاس درلود، بشار بن بدر تخارستاني شاعر او ابو زید احمد بن سهل بلخي ادیب، فیلسوف او جغرافیه پوه وو.

## سوچ وکړئ او ځواب ورکړئ!

د عباسیانو په وړاندې د افغانستان د خلکو د پاڅون دلایل توضیح کړئ.

## برمکیان

برمکیان په اصل کې د برمک په نامه د یوه شخص د زامنو له ډلې څخه دي. برمک د بلخ د نوبهار د زردشتي اورتون (آتشکده) راهب یا موبد و. د دې کورنۍ لومړنی مشهور شخص د برمک زوی خالد و چې د اموي وروستنی خلیفه مروان حمار په چوپړ کې و. نوموړي وروسته د عباسي ابوجعفر منصور د وزیر او سلاکار په توګه هم دنده ترسره کوله. له خالد څخه وروسته یحیی د ده زوی د دې کورنۍ پوه او متنفذ شخص ګڼل کېږي. نوموړی د مهدي له خوا د هارون الرشید د پالنې او روزنې لپاره وګمارل شو. نوموړي د هارون الرشید په زمانه کې د عباسي خلافت ټولې چارې په غاړه لرلې او له دوو زامنو سره یې د دوی لپاره کار کاوه.

څه موده وروسته هارون الرشید په دوی بدګمانه شو او په (۱۸۷ هـ / ۸۰۳م) کې یې د خلیفه د امر سره سم د یحیی زوی جعفر مړ او پخپله دی یې د کورنۍ له نورو غړو سره په بند محکوم کړل. او د برمکیانو ټول مالونه یې هم ضبط کړل.

## طاهر فوشنجي (طاهر ذوالیمینین)

طاهر بن حسین فوشنجي په (۱۵۹ هـ / ۷۷۶م) کې په فوشنج یا د هرات په اوسني زنده جان کې وزیږېده. طاهر د ځوانۍ له پیل څخه په سیاسي او ټولنیزو فعالیتونو کې ګډون کاوه. نوموړی هوډمن

سړی و. د دوو عباسي ورونو مامون او امين د اختلاف په برخه کې ده د مامون الرشيد چې د بادغيسۍ مور څخه زیږېدلی و ملاتړ وکړ او په (۱۹۵ق / ۸۱۱ م) کې يې امين الرشيد وواژه.

څه وخت چې مامون الرشيد خلافت ته ورسېده. طاهر د ده له پلوه د خراسان والي وټاکل شو. طاهر په (۲۰۷ ق / ۸۲۲ م) کـال کې د جمعې په ورځ همدلته د خطبې په مها ل د خليفه نوم د خطبې څخه لرې کړ او د خپلواکۍ اعلان يې وکړ. خو په سبا ورځ په نامعلوم ډول ووژل شو. له ده وروسته د ده اولادونو په افغانستان کې د پنځوسو کلونو په موده کې واکمني درلوده.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دريو ډلو وويشل شي، هره ډله دې بيا له لاندې موضوعګانو څخه يوه موضوع وټاکي له خبرو اترو وروسته دې د ټولګي يو تن بيا د خپلې ډلې نظريات او معلومات نورو غړو ته وړاندې کړي.

- د عباسيانو په دوره کې د افغانستان سياسي وضعيت.
- د عباسيانو په دوره کې د افغانستان اقتصادي وضعيت.
- د عباسيانو په دوره کې د افغانستان پوهنيز وضعيت.



### پوښتنې

۱- عباسيانو څه وخت او څه ډول خپل سياسي فعاليتونه په افغانستان کې پيل کړل؟

۲- طاهر څوک و او څه ډول واکمنۍ ته ورسيد؟

۳- برمکيان د کوم ځای وو او په څه ډول يې د عباسيانو دربار ته يې لاړ وموندہ؟

۴- ستاسو په اند ولې هارون الرشيد په برمکيانو بدګمانه شو؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

په افغانستان کې د امويانو او عباسيانو کړه وړه، ورته والی او توپيرونه په لنډ ډول سره پرتله کړئ.

# د عرب مسلمانانو او د افغانستان د خلکو پریوبل اغیزې

په دې لوست کې به زده کړو چې اسلام په څه ډول زموږ خلکو ته اسلامي هویت ورکړ، یووالی یې ورویاښه او د پوهې دروازې یې ورته خلاصې کړې او په بدل کې زموږ د هېواد خلکو او پوهانو د اسلام د پرمختګ په لاره کې څه قرباني ورکړې او اسلامي نړۍ ته یې څه پوهنیز او فرهنګي خدمتونه وکړل؟

د اسلام د سپیڅلي دین په راتګ او خپرېدو سره، زموږ د هېواد تاریخ یو نوي پړاو ته ورننوت؛ څکه اسلام مونږ ته نوی اسلامي هویت وباښه او دغه اسلامي هویت زموږ د خلکو د یووالي سبب شو او ټول قومونه او قبیلې د یوه دین او عقیدې خاوندان شول. همدارنګه د اسلام دین د پوهې د لاسته راوړلو په لاره کې خنډونه او د پوهې انحصار له منځه یووړ نو په دې دلیل پوهې او زده کړې پراختیا وموندله.

همدا چې زموږ خلکو په لومړۍ هجري پیړۍ کې اسلام ومانه د عربی ژبې په زده کړه او دیني علومو لکه قران شریف، حدیث، او فقې په تحصیل کې یې لوی لوی بریالېتوبونه تر لاسه کړل او تردرېیمې پیړۍ پورې یې ډېر مشهور پوهان لکه نعمان بن ثابت چې امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله شهرت لري، امام احمد بن حنبل مروزي، ابو داوود سجستاني (سیستاني) او داسې نور تر دریمې هجري پېړۍ پورې راښکاره شول چې د اسلام د دین لپاره یې د قدر وړ خدمتونه وکړل.

همدارنګه په دې دورې کې سیستاني عالمانو او پوهانو له دې سیمې نه سر پورته کړ او د پوهې په بېلابېلو څانګو کې یې تآلیفات رامنځ ته کړل. په دې ځای کې د ځینو هغو لیکوالانو یادونه اړینه بولو چې د دویمې هجري پیړۍ له نیمایي څخه یې د کتابونو په لیکلو پیل وکړ:

ابو زید بلخي ادیب او جغرافیه پوه، ابو مشعر بلخي ریاضی پوه، محمد بن موسی د هندسې عالم بشار بن برد، تخارستانی شاعر او ابو نصرفارابی ( چې د لرغوني نړۍ د طب، جغرافیې، فلسفې، نجوم او ادبیاتو تر ټولو لویو عالمانو له ډلې څخه شمېرل کیږي) څخه عبارت دي. د دوی له آثارو څخه ځنې په اتلسمه او نولسمه پیړۍ کې په اروپا کې د نړۍ ژوندیو ژبو وژباړل او بیا خپاره شول.

زموږ خلکو د خپلو پیاوړو کورنیو او خلکو په واسطه د افغانستان تهذیب د خپلو ژباړونکو په وسیلې عربي ټولنې ته او د اسلام تمدن یې نړۍ ته وړاندې کړ. د برمکیانو کورنی په دویمې هجري پېړۍ کې د طب په برخې کې د (منکه) کتاب، د نجوم او فلکیاتو په برخه کې د (سند هند) کتاب او د سند باد کیسه عربي ته وژباړله.





همدارنگه زموږ خلکو د اسلام د پراختیا او خپرېدو په لاره کې ډېرې قرباني ورکړې او اسلام يې د هېواد تر ختيځو پولو يعني هند پورې خپور کړ.

په دې ترتيب د عربي مسلمانانو او زموږ د هېوادوالو ترمنځ اغېزې دوه اړخيزې وې. اسلام زموږ خلکو ته نوی اسلامي هويت ورکړ، يووالی يې وروبانه د پوهې دروازې يې زموږ پرمخ پرانيستې. په بدل کې د افغانستان خلکو هم د علمي او فرهنګي خدمتونو او همدارنګه د وينې په بيه يې د اسلامي تمدن او د اسلام د خپرېدو په لاره کې فعاله ونډه واخيسته او په ځانګړې توګه پوهانو او عالمانو په دې برخه کې ارزښتناکه ونډه درلوده.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، يوه ډله دې د عربي مسلمانانو اغېزې زموږ په هېواد والو او دويمه ډله دې زموږ د هېوادوالو اغېزې په عربي ټولنه او اسلامي نړۍ کې تر خبرو اترو لاندې ونيسي او د خبرو اترو پايلې دې له دوی څخه يو تن بيا نورو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- د عربي مسلمانانو او د افغانستان د خلکو تر منځ ګډې اغېزې څه ډول وې؟ په دې هکله څرګندونې وکړئ.

۲- زموږ د هېواد پوهانو او عالمانو اسلامي نړۍ ته کوم خدمتونه کړي دي؟ په لنډه توګه يې بيان کړئ.

۳- ستاسو په اند د بلخ برمکي ډلې د اسلام په تمدن کې کوم مقام درلود؟ په دې هکله څرګندونې وکړئ.



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

افغانستان ته د اسلام تر ټولو مهم خدمت په هکله يوه مقاله وليکئ او تر راتلونکي لوست مخکې يې وړاندې کړئ.

# دویم څپرکی

## په افغانستان کې د اسلام له راتلو وروسته خپلواک حکومتونه

په دې څپرکي کې به د هغو حکومتونو سره پېژندګلوي تر لاسه کړئ چې افغانستان ته د اسلام له راتګ څخه وروسته جوړ شول.



په بلخ ولایت کې د حضرت علي (کرم الله وجهه) روضه



د هرات ستر جامع جومات

# د څپرکي موخې

۱. د اسلام څخه وروسته له سیمه ییزو واکمنو کورنیو او د هغوی د حکومتونو د رامنځته کېدلو له لاملونو سره د زده‌کوونکو بلدول؛

۲. له درېمې نه تر اوومې هجري پیړۍ پورې د هېواد د څپلواکې غوښتونکو څېرو سره د زده‌کوونکو بلدول؛

۳. په هېواد کې د سیمه ییزو حکومتونو یو له بل سره د اړیکو او د بغداد د خلافت سره د هغوی اړیکو په څرنګوالي د زده‌کوونکو بلدول؛

٤. زموږ په هېواد باندې د تیموریانو او مغولو د یرغلونو د علتونو او انګیزو څېړل او همدارنګه د هغو په پایلو باندې د زده‌کوونکو پوهیدل؛

۵. له درېیمې نه تر لسمې هجري پیړۍ پورې زموږ د هېواد له عمومي اقتصادي او فرهنګي وضعې سره د زده‌کوونکو بلدول؛

٦. زده‌کوونکي دې د تاریخي نقشو او اطلسونو څخه کار واخیستلای شي؛

۷. په یاده شوې دورې کې د هېواد له تاریخي او فرهنګي څېرو، عالمانو او پوهانو سره د زده‌کوونکو بلدتیا.

# طاهريان او صفاريان

ايا پوهېږئ چې له اسلام څخه وروسته د خپلواکۍ هڅه لومړی طاهر فوشنجي تر سره کړه او وروسته د طاهر د نيمه خپلواک دولت د منځته راتلو څخه صفاريانو د عباسي خلافت څخه د خپلواکۍ اخيستلو په لاره کې د پام وړکارونه کړي؟




زموږ د هېواد په تاريخ کې د طاهريانو او صفاريانو هغه دوه دولتونه و چې له عباسيانو سره يې مخالفت کاوه. که هر څومره طاهريان د حکومت تر پايه په نيمه خپلواکه توگه پاتې شول خو صفاريانو د دوی په پرتله خپلواکه سياست غوره کړ او په همدې علت د عباسي خلفاو سره په شخړو کې ښکيل شول. د ملي فرهنگي هڅو له پلوه هم صفاريان د ملي فرهنگي ملاتړ لرونکو څخه شمېرل کېږي. په دې لوست کې به له پورته مطالبو سربېره د دې دوو کورنيو د هغه وخت له ډېرو نورو سياسي، اقتصادي او فرهنگي موضوعاتو څخه خبر شئ.

## طاهریان

د دغې کورنۍ نوم د حسین د زوی طاهر له نوم څخه اخیستل شوی چې اصلاً د پوشنگ یا فوشنج ( د هرات زنده جان) اوسېدونکي دي او د هرات له لرغونو کورنیو څخه شمېرل کېږي. د طاهر نیکه (مصعب) په عباسي نهضت کې ګډون وکړ نو څه وخت چې عباسیانو برى وموند، د پوشنګ د ښار مشري یې ده ته وسپارله.

له دې وروسته دا مقام د دوی په کورنۍ کې پاتې شو او طاهر هم د ځوانۍ په پیل کې دا دنده لرله.

طاهر د دوو ورونو هر یو امین او مامون د اختلاف په مسئله کې د عباسي مامون پلوي وکړه او د امین له وژلو څخه یې وروسته د مامون خلافت ته زمینه برابره کړه. که څه هم طاهر وروسته له دې د عباسي خلافت په لوړو مقامونو کې دندې ترسره کړې، خو تل به دا سوچ ورسره و چې د مامون د ورور (امین) د وژلو په مسئلې کې خلیفه راته په غوسه نه شي نو په همدې دلیل یې نه غوښتل چې په بغداد کې زیات پاتې شي. او له بله پلوه په (۲۰۴ ق) کال کې له خراسان څخه بغداد ته د مامون په راتلو سره، نوموړي باید دغه سیمه یوه تکړه کس ته سپارلې وای، ترڅو د عباسي خلافت پر وړاندې احتمالي پاځونونه وځپي او د مامون الرشید په نظر طاهر وړکس و. نو له دې امله خراسان ته د طاهر د راتلو دلایل په لاندې توګه وړاندې کولای شو:

۱- د خراسان سیمه د طاهر په څېر د یوه پیاوړي او تکړه سړي په شتون کې د عباسي خلافت ضد پاځونونو څخه خوندي پاتې کېدله.

۲- طاهر چې د مامون د ورور (امین) او په عباسي خلافت کې د امین د نورو پلویانو په وژلو یې په بغداد کې ځانته د اوسېدو ځای نه لیده، نو دایې ښه وګڼله چې له بغداد څخه لیرې وي.

۳- طاهر د خراسان د مشرۍ په منلو سره، د مامون د ملاترۍ عوض ترلاسه کاوه.

نو په دې ترتیب طاهر په (۲۰۷ ق / ۸۲۲ اکتوبر) کا ل د ذالقعدې په میاشت کې د مامون څخه د خراسان حکومت د مشرۍ فرمان ترلاسه کړ. په دې هکله ویل کېږي: چې عباسي خلیفه په پټه سره د طاهر د کړو وړو د څارلو لپاره یو څوک ګمارلی وو. او هغه وخت چې نوموړي له عباسي خلافت څخه د خپلواکۍ نیت څرګند کړ، د ده کاریې یو طرفه کړ او له پښو یې وغورځاوه.

برسېره پردې چې د لمانځه له خطبې یې د مامون نوم ایسته کړ په هغو سکو کې هم د عباسي خلیفه نوم نه لیدل کېږي چې د (۲۰۶ ق) کال څخه را پاتې دي. او دا د حسین د زوی (طاهر) مینه دخپلې سیمې د خپلواکۍ په باره کې ښیي.

## د طاهر زامن

د بغداد له دربار سره د طاهر د زامنو اړیکې د طاهر په پرتله ښې وې، د طاهر له مړینې سره جوخت د ده زامنو هر یوه عبدالله او طلحه په عراق او خراسان کې ښه منصبونه ترلاسه کړل. له دې وروسته داسې ریوټ نه دی اوریدل شوی چې له خپلواکۍ سره د طاهر د اولادونو مینه وښیي.

له طاهر وروسته د طاهریانو د حکومت ترټولو لویه سیاسي ځانګړتیا د بغداد د عباسي خلافت څخه ملاتړ او مرسته شمېرل کیږي. او دوی د عباسي خلفاوو د خدمت لپاره ملاوې تړلې وې او په دې توګه د عباسیانو او طاهریانو ترمنځ اړیکو دوام وموند.

هغه پاڅونونه به چې قصداً د عباسي خلافت پر وړاندې د خوارجو یا علویانو له خوا ترسره کېدل د طاهریانو له خوا به ځپل کېدل.

په افغانستان باندې د طاهر زامنو (۵۵) کاله واکمني وکړه خو دغه واک بیا صفاریانو په سیستان کې له طاهریانو څخه تر لاسه کړ چې وروسته بیا په افغانستان کې د دوی د واک او حکومت پراختیا د طاهریانو دولت د له منځه وړلو لامل وګرځېده او د دې کورنۍ وروستی سړی محمد بن طاهر په نوموړي (۲۵۹ ق) کال کې د یعقوب لیث صفاري له خوا ونیول شو او د نوموړي ساه په زندان کې وختله.

## طاهري مشران

طاهر بن حسین (۲۰۶ – ۲۰۷ق)

طلحه بن طاهر (۲۰۷ – ۲۱۳ ق)

عبدالله بن طاهر (۲۱۳ – ۲۳۰ق)

طاهر بن عبدالله (۲۳۰ – ۲۴۸ ق)

محمد بن طاهر (۲۴۸ – ۲۵۹ق)

## صفاریان

یعقوب د صفاري حکومت بنسټګر او د ده درې وروڼه هر یو عمرو، علي او طاهر د لیث زامن وو. پلار یې په سیستان کې د صفارۍ یا ټټارۍ په کسب بوخت و. او په همدې دلیل دوی د صفاریانو (ټټارانو) په نوم مشهور شول.

سیستان د دریمې هجري پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې د بېلابېلو ټولنیزو ډلو د رامنځته کېدو شاهد و. پرته له خوارجو چې افراطي ډله شمېرل کېده بله ټولنیزه ډله، عیاران نومېدله چې د ټولنې د ټیټې او بیوزلو خلکو په منځ کې د ډېر نفوذ لرونکې شوه او یعقوب چې پخپله هم د ټولنې د ټیټې طبقې څخه و په ځوانۍ کې له دې ډلې سره یو ځای شو او د خپلې وړتیا او لیاقت په مټ ډېر ژر د دې ډلې د افسرۍ او مشرۍ درجې ته ورسېد، د سیستان خلکو د (۲۴۷ ق کال د/ ۸۶۱م) ورسره بیعت وکړ، له هغه








وروسته یعقوب لیث صفاري زموږ د هېواد د ډېرو سیمو په نیولو پیل وکړ.

یوله هغو علتونو څخه چې په سیستان کې یې د یعقوب بریالیتوب ته مرستندوی واقع شو هغه د ده له لښکرو سره دګڼ شمېر خوارجو یوځای کېدل وو چې ده د هغوی په ملګریتوب ټول سیستان چې مهم ښارونه یې بُست او کندهار وو ونیول، دغه راز د کرمان، هرات او کابل ښارو ته یې هم ونیول او په دې خاطر چې مخالفان له ده سره یوځای شول نو له دې امله د ده تر ولکې لاندې سیمو کې ښه امن رامنځته شو. نوموړي په (۲۵۹ ق ۸۷۲ م) کال کې د طاهري حکومت مرکز نیشاپور ونیو خو ونه توانېده چې د ایران په شمال کې طبرستان هم تر ولکې لاندې راولي.

## د یعقوب او عباسي خلیفه اړیکې

په خلافت کې د انقلاب او بیلابیلو پاڅونونو له امله د خلافت د واکمنۍ په سیمو کې او همدارنګه د عباسي دربار په د ننه کې د ترکانو نفوذ، د عباسي خلفاوو ځواک کمزوری کړی و؛ نو ځکه یعقوب لیث صفاري د اسلامي قلمرو ځینې سیمې تر خپلې ولکې لاندې راوستې او خلیفه د ده امارت له منلو پرته بله لاره نه لیده.

یعقوب لیث صفاري هم چې د عباسي خلیفه له دې دریځ څخه خبر و، د خپل حکومت د نفوذ د سیمې د پراختیا په خاطر له خلیفه سره له درنښته ډک چلند کاوه. او ځینې وخت به یې ډالۍ هم

ورلېږلې. لکه چې يو ځل يې ډېرې قيمتې ډالۍ د پنځوسو په شمېر د سرو اوسپينو زرو بتان چې له کابل څخه لاسته ورغلي وو، خليفه معتمد عباسي ته ولېږل او معتمد هم د خپل ورور (موفق) په واسطه د بلخ، تخارستان، سند او سيستان د حکومت فرمان ورولېږه. خو وروسته له دې، يعقوب په (۲٦۲ هـ / ۸٦۷م) کال هغه وخت چې غوښتل يې خپله واکمني د عباسي خلافت تر لمنې ورسوي او د بغداد د ادارې غوښتونکی شو نو له عباسي خليفه سره په جګړې کې ښکيل شو. او په پايله کې د خليفه د ورور (موفق) د چل په واسطه چې د دجلې اوبه يې په صفاري لښکرو ورخوشې کړې او هغوی يې له ډېرې سختې ماتې سره مخ کړل له دې وروسته عباسي خليفه د صفاريانو دمخالفينو يعنې سامانيانو د ملاتړ سياست ځانته غوره کړ.

## د صفاريانو د حکومت پای

يعقوب ليث صفاري د عباسي خليفه له خوا د ماتې نه څه موده وروسته، په (۲٦۵ ق / ۸۷۹م) کال کې مړ شو، له هغه وروسته د ده ورور عمرو د واکمنۍ ډګر ته راووت. که هرڅو د عمرو او د بغداد د حکومت اړيکې په لومړي سر کې څه نا څه ښې وې او هغه قېمتي ډالۍ د خليفه لپاره ورولېږلې خو دغه اړيکې تر ډېرې مودې پاتې نه شوې دا ځکه چې عباسي خلافت په اصل کې له صفاريانو سره د زړه مينه نه لرله او د نوموړي د اطاعت په هکله يې شک درلود. ځکه په (۲۷۱ق ۸۸٤م) کا ل کې د بغداد خليفه د خراسان حاجيان ځانته وروغوښتل او د هغوی ترمخ يې دغه اعلان وکړ چې عمرو ليث صفاری مې له ټولو مقامونو او منصبونو څخه لېرې کړی دی. دغه مسئله له يوه پلوه د صفاريانو په سيمې کې پاخونونه رامنځته کړل او له بل پلوه د صفاريانو کمزورۍ ته يې لاره اواره کړه. په دې ترځ کې، په ماوراُلنهر کې د سامانيانو واک چې د بغداد د عباسي خلافت له ملاتړ څخه هم برخمن وو، د عمرو ليث صفاري وېره يې لازياته کړه. نو له دې امله يې د هغوی د مقابلې لپاره ترتيبات ونيول او په (۲۸۷ ق/ ۹۰۰م) کال کې د دوی په وړاندې جګړې ته ووت. خو بلخ ته نژدې د اسماعيل ساماني د لښکرو له خوا يې ماته وخوړه. امير اسماعيل ساماني نوموړی بغداد ته د خليفه معتمد حضور ته ولېږه هلته زنداني شو او په (۲۸۹ق) کال کې ووژل شو.

له دې وروسته د صفاريانو پاتې خلکو يوه پېړۍ په سيستان کې واکمني وکړه او د دوی وروستی مشر د خلف ابن احمد په نامه په (۳٤٤ - ۳۹۹ ق/ ۹۵۵- ۱۰۰۸ م ) کال کې د سلطان محمود غزنوي له خوا ووژل شو.

## د طاهريانو او صفاريانو په دوره کې اقتصاد او فرهنګ

په هغه وخت کې زموږ د خلکو د اقتصاد اصلي بنسټ کرنې تشکيلاوه. او د کرنې کار ته پاملرنه د طاهري مشرانو، په تېره بيا د طاهر د زوی عبدالله له مهمو او مثبتو اقداماتو څخه و.

ځکه ده برسېره پردې چې د کښتونو د له منځه وړلو په برخه کې به يې د خپلو عسکرو مخه نيوله، د

کرکیلې د ښه والي لپاره یې ځینې ارزښتناک کارونه هم ترسره کړل. عبدالله بن طاهر د اوبو لګولو سیستم د جوړولو په برخه کې د ټولو په سرکې یادولای شو. زموږ د هېواد مشهور تاریخ لیکونکی عبدالحی بن ضحاک ګردېزي د رپورټ له مخې، نوموړي د خراسان ټول فقها راغونډکړل او له هغوی څخه یې وغوښتل چې د اوبو لګولو په برخه کې شرعي موازین وضع کړي او دوی د (کاریزکتاب) یا (کتاب القنی) په نامه یو کتاب ولیکه. دغه موضوع زموږ په هېواد کې د ډېرو کاریزونو او همدارنګه د پر مختللي اقتصاد ښودونکی دی. دغه ذکر شوي کاریزونه زیاتره د پردیو د یرغلونو په پایله کې ړنګ شول.

همدارنګه د عبدالله بن طاهر په توصیو او سپارښتنو د ښارونو کارګرانو (کارپوهانو)ته د کرنې په هکله سپارښتنه شوې ده. طلحه بن طاهر هم د کرنې په وده کې د خپل ورور د سیاست پلوي و. په پایله کې په اقتصادي برخه کې د پام وړ ښه والی راغی. بېلابېلې مېوې او غلې کېدلې، همدا رنګه د هرات انګورو، با دامو او پستې، د سیستان خرما، د بست زعفران او د بلخ او مروې انارو ډېر شهرت درلود او زموږ هېواد ته یې ښه شتمني برابره کړه. خو صفاریانو د پاچاهۍ ډېر وخت په جګړو او همدارنګه د سیمو او ایالتونو د لاسته راوړلو په برخه کې تېرشو د هېواد د اقتصاد لپاره یې روښانه پروګرام نه درلود خو په فرهنګي برخه کې د ملي ادبیاتو مینه وال و، او دا یې غوره ګڼله چې پارسي ژبه باید د عربي ژبې او ادبیاتو ځای ونیسي.

ویل کېږي چې یعقوب لیث صفاري د پیغامونو مدیر مسؤول محمد بن وصیف سګزي څخه وغوښتل چې د عربي ژبې په ځای په پارسي ژبه شعر ولیکي. نوموړي د یعقوب په ستاینه کې یوه پارسي قصیده ولیکله. خو طاهریانو عربي ژبه ومنله، د طاهر یو زوی طلحه پخپله د عربي ژبې د نحوې عالم و. د طاهري امراو له ډلې څخه یو خو نور هم د پوهانو او ادیبانو د ملاتړ په برخه کې مشهور وو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې د الف او ب په دوو ډلو کې د طاهریانو فرهنګي او اقتصادي خدمتونه وشمېري.



## پوښتنې

١- خپل اصلي سیمې ته د طاهر د راګرځېدو مهم دلیل څه دی؟

٢- ایا د عباسي خلیفه په وړاندې د طاهر سیاست د ده د اولادونو له خوا وپالل شو؟

٣- د یعقوب لیث صفاري د کار په پیل کې، د ده د شهرت علت څه و؟

٤- د طاهریانو په دوره کې کرنې او زراعت ولې وده وکړه؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د خپل هېواد تاریخ او فرهنګ ته د طاهر او یعقوب د خدمتونو په هکله یو لنډ مطلب چمتو او په راتلونکي لوست کې دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# سامانیان

په دې لوست کې به د سامانیانو د واکمنې کورنۍ سره آشنا شئ هغه چې د بغداد د عباسي خلفا وو د سیاست په ملاتړ یې په افغانستان او د هغه د اوسنیو ګاونډیو هېوادونو په ساحه کې یو پیاوړی او پراخ حکومت رامنځته کړ او په دې به هم وپوهېږئ چې د دوی د واکمنۍ په مهال ولې زموږ هېواد له علمي او فرهنګي غوړېدا سره مخ شو؟




سامانیان د ختیځو اصلي کورنیو له ډلې څخه دي چې ریښه یې له اسلام څخه مخکې وختونو ته رسېږي. دوی د عباسي خلفاوو په پلوۍ خپل سیاسي موقعیت د افغانستان، ایران او مرکزي آسیا په اسلامي ختیځ کې ټینګ کړ. سره له دې چې سامانیانو له خلفاوو سره ښې اړیکې لرلې خوبیایې هم مالیات او خراجونه بغداد ته نه لېږل. د دوی د حکومت شکل ((امارت استکفاً استیلا)) (معنا دا چې خلیفه د عزل او نصب، د مالیاتو اخیستل، د ځایناستي ټاکلو او ... کې به لاسوهنه نه کوي) پېژندل شوی دی. د سامانیانو دوره د اسلامي فرهنګ او تمدن د غوړېدنې دوره بللی شو. په ځانګړې توګه عقلي علومو د دوی په دوره کې ډېره وده وکړه.





## سامانیان

سامانیان د سامان خدات په نامه د یوه سړي له نوم څخه اخیستل شوي دي. زموږ د هېواد د مشهور تاریخ لیکوونکي عبدالحی گردېزي په وینا سامان خدات له مغان یا زردشتي روحانیونو څخه شمېرل کېږي او د ماوراءالنهر په څنډو کې یې استوگنه کړې ده.
د سامان خدات پلرونه له اسلام څخه د مخه د ماوراءالنهر له مشرانو څخه وو. او له اسلام څخه وروسته هم په ماوراءالنهر کې د رسوخ او نفوذ خاوندان وو. سامان خدات د اموي هشام بن عبدالملك په زمانې کې مسلمان شو او د اسد بن عبدالله په نامه د خراسان د اموي حاکم تر ملاتړ لاندې راغی. نوموړي وروسته د ابو مسلم خراساني په نهضت کې برخه واخیسته او د ابومسلم له ملگرو څخه شو. چې په عباسي دولت کې یې هم د ښه نوم ازانگې پورته شوې.
د دویمې هجري (اتمې میلادي) پېړۍ په پای کې هغه اختلاف چې د هارون الرشید د زامنو تر منځ د ځیناستې په مسئله کې رامنځته شو، مامون الرشید سره په مروه کې خلکو بیعت وکړ مامون الرشید له ځینو بانفوذه کورنیو لکه طاهریانو او سامانیانو څخه د مرستې غوښتنه وکړه او د دوی د مرستې په بدله کې یې بیا وروسته ډېر مهم حکومتي مقامونه دوی ته وسپارل. له همدې وخته وروسته د عباسیانو او سامانیانو تر منځ اړیکې سره نژدې شوې او څه وخت چې مامون الرشید له مروې څخه بغداد ته لاړ نو د عباسي خلافت په ختیځ کې یې د څلورو مهمو ښارونو مشري د سامان څلورو زامنو ته وسپارله: نوح بن اسدته یې سمرقند، احمدبن اسد ته یې فرغانه، یحیی بن اسدته تاشکند او الیاس ته یې هرات وسپاره.
د صفاریانو په را څرگندېدو سره چې د بغداد له خلافت سره یې چندان ښې اړیکې نه لرلې. د بغداد د خلفاوو او سامانیانو اړیکې یوې نوې مرحلې ته د اخلې شوې او د بغداد خلافت چې د مخالفینو د شتون له امله یې د سامانیانو ملاتړ ته اړتیا لرله، هڅه یې کوله چې د دوی د حکومت ته په غاړې اېښودو سره، سامانیانو ته سیاسي مشروعیت ورکړي. سامانیانو هم چې دې ډول تائید ته اړتیا لرله نو د خلافت په تائید سره یې د عامو خلکو په ذهنونو کې ډېر ښه ځای ونیو.

## د ساماني لړۍ لومړی بنسټگر، اسماعیل

د ساماني لړۍ بنسټگر اسماعیل بن احمد بن سامان خدات دی. نوموړی په (۲۳۴ق، ۸۴۸ م) کال په فرغانه کې وزیږېد. امیر اسماعیل په پوره ډول، په ماوراءالنهر کې هغه وخت واکمني ترلاسه کړه چې د ده ورور (نصر) په (۲۷۹ق، ۸۹۲ م) کال کې مړشو خو د ده شهرت او اعتبار هغه وخت







د بخارا په ښار کې د امیر اسماعیل ساماني قبر

زیات شو چې صفاریانو ته یې په جګړه کې ماتې ورکړه او عمرو بن لیث صفاري یې ونیوه. دغه پېښه د (۲۸۷ق/ ۹۰۰ میلادي کال د اپریل ۱۹م) کې د ربیع الاول په ۱۵ ق رامنځته شوه. وروسته له دې پېښې یې عباسي خلیفه معتضد ته د حکومت فرمان ولېږه، ځکه چې د صفاریانو (د خلافت له اوامرو څخه د سرغړوونکو) په ماتې سره سامانیانو په عباسي خلافت کې ډېر محبوبیت ترلاسه کړ.

امیر اسماعیل ساماني د عباسي خلافت د ملاتړ په لاره کې د نورو مخالفانوسره هم جګړې وکړې لکه د طبرستان له علوي ساداتو سره یې جګړه وکړه او د هغوی مشر محمد بن زید علوي یې وواژه، طبرستان او ری (اوسنی تهران) او لږ وروسته یې زنجان او قزوین هم ونیول اوپه دې ترتیب یې د خپلو فتوحاتو لمنه له افغانستان څخه واړوله او د اوسني ایران ترلویدیځو څنډو ورسېد.

د امیر اسماعیل ساماني په وخت کې، د ساماني دولت پلازمېنې یعنې د بخارا ښار ښه پرمختګ وکړ او په ختیځ کې د اسلامي ښارونو په یو مهم مرکز بدل شو. امیر اسماعیل کابو له اتو کلونو امارت وروسته، په (۲۹۵ق، ۹۰۷ م) کال مړ شو.

## د امیر اسماعیل ځایناستی

د امیر اسماعیل زوی دویم احمد د ده ځایناستی شو. د ده د واکمنی په دورې کې چې پنځه نیم کاله اوږده شوه، د ساماني دولت عسکرو په سیستان کې د صفاریانو د پاتې شوو او همدارنګه په ماوراءالنهر کې یې له ترکانو سره نښتې وشوې. په دې نښتو کې ساماني دولت بری وګاټه خو احمد ساماني ډېر ژر په (۳۰۰ق- / ۹۱٤ م) کې د خپلو مریيو له خوا ووژل شو. وروسته له ده څخه د نوموړي زوی (نصر) واکمنی ته ورسېد. که هر څو د نوموړي د پاچاهۍ پیل په هغو ولایتونو کې چې د ساماني دولت تر ولکې لاندې وو، له شخړو سره لاس اوګریوان و خو نوموړي د خپل عالم او تکړه وزیر (ابوعبدالله جیهاني) او د لښکرو د وفادار مشر (حمویه بن علي) په مرسته بېرته خپل هېواد ته امنیت او ثبات راوست. په اصل کې د نصر د پاچاهۍ دوره (۳۰۱ نه تر ۳۳۱ ق / ۹۱٤ نه تر ۹٤۲ م) کلونو کې د ساماني لړۍ د حکومت د دبدبې د اوج دوره وه.

د نصر له مړینې وروسته ساماني حکومت تر (۳۹۵ ق / ۱۰۰۵ م )کال پورې پاتې شو اویه دې موده کې اوه تنه ساماني مشران واکمنۍ ته ورسېدل. خو د ساماني دولت ځوړتیا هغه مهال پیل شوه چې زیات واک سیمه ییزو مشرانو ته په لاس ورغی. له دې مشرانو څخه یو هم الپ تګین نومېده چې په لومړیو کې د ترک غلامانو څخه و. نوموړي په غزنه کې په (۳۵۱ ق/ ۹٦۲م) کا ل کې د ترک مریيو په ملاتړ د غزنویانو د نوي حکومت بنسټ کېښود. ساماني حکومت او دولت یو سلو دوه کاله او شپږ میاشتې اوږد شو.

## د سامانیانو په دورې کې اقتصاد او فرهنګ

د سامانیانودوره چې د ختیځې نړۍ په تاریخ کې د اسلامي رنسانس په توګه تعبیر شوې د اقتصاد له پلوه په ځانګړې توګه زموږ د هېواد له روښانه دورو څخه شمېرل کېږي. د اقتصاد او صنعت په برخه کې د پر مختګ دوه عمده لاملونه یې په لاندې توګه بیانولای شو:

لومړی د درنو مالیاتو او باجونو نشتوالی او دویم لازم کورنی ثبات او همدارنګه بهرنۍ سوله. د پورته دوه عواملو په ترڅ کې ښه اقتصادي وده رامنځته شوه. د خلکو اقتصادي وړتیا لوړه، قصرونه، باغونه او ظریفه صنایع را منځته شول. د خلکو تولیداتو وده وکړه ترهغه ځایه چې په یوه کا ل کې د سامانیانو لخوا د ټول هېواد نه څلوېښت مېلیونه درهم راټولېدل.

په هغو کشفیاتو کې چې بیا وروسته د پولنډ او سکانډیناوې هېوادونو په څنډوکې ترسره شوي، د

سامانیانو د وخت نقره یي سکې لاسته راغلې او دا خبره څرګندوي چې د ساماني دولت او ختیځې اروپا تر منځ د سوداګریزو توکو راکړه ورکړه کیدله.
له بزګرانو څخه د ساماني دولت د ملاتړ په سیوري کې کرنې او زراعت هم ښه وده وکړه. او په ځانګړې توګه په ګڼ مېشتو سیمو لکه بادغیس، هرات، پوشنګ د سیستان ځینو برخو او بُست کې د مېوو، غلو اونباتاتو بیلابیل ډولونه پیدا کېدل. د څارویو په ځانګړې توګه د آسانو او اوښانو د ساتنې مرکزونه په تخارستان او بلخ کې موجود وو او په هرات او بُست کې وریښم هم تولیدیدل.
که څه هم د سامانیانو سیمې ته د ترکانو راتګ او بیا لوړو حکومتي او سیاسي مقامونو ته د دوي لاس رسي، دغه پروسه څه نا څه زیانمنه کړه خو داسې ریوټ نه دی لاسته راغلی چې اقتصادي وضعه یې له خطر سره مخ کړې وي.
د فرهنګ او تمدن په برخه کې مهم یون رامنځته شو؛ ځکه د سامانیانو په لاس د یوه پیاوړي نظام د بنسټ اېښودو سره، فرهنګ او تمدن وده وکړه او د استعدادونو د راڅرګندېدو لپاره مناسب چاپېریال رامنځته شو. په ځانګړې توګه د نظم او نثر په برخه کې ډېر لوی بدلون رامنځته شو.
د سامانیانو په دورې کې د پوهنو د پراختیا مهم علت، د عقیدې آزادي او همدارنګه د ساماني مشرانو حوصله او نرمي وه. په دې دورې کې له تعصبه ډکه فضا موجوده نه وه. د بېلا بېلو فکري او دیني کړنلارو او همدارنګه د نظر او فکر دخاوندانو لپاره یو ډاډمن چاپیریال موجود و. ساماني مشرانو هڅه کوله چې له ځان پالنې او عقیدتي استبداد څخه ځان وژغوري. او همداکار د بېلا بېلو فکرونو د راڅرګندېدو لامل شو. محمدخوارزمي او ابو ریحان البیروني په ترتیب سره په خپلو کتابونو (مفاتیح العلوم) او (آثارالباقیه) کې د هغه وخت د بېلا بېلو فکري او عقیدتي څانګو او ډلو څخه خبر راکوي او په (زین الاخبار) کې د عبدالحی ګردېزي په وینا، د سامانیانو د یوه وزیر ابو عبدالله جیحاني په امر د ساماني دربار د کړنلارو ټاکلو او همدارنګه د هېواد د ادارې لپاره، د هغه وخت د نړۍ د ټولو دربارونو کړنلارې بې له تعصبه راټولې کړې او د دوی له منځ څخه د هغو هېوادونو قوانین غوره کړي چې پرمختللې انساني بڼه ولري. نوموړي وروسته امر وکړ چې د دربار او دېوان ټول غړي نوموړو کړنلارو عملي کولو ته غاړه کېږدي. نوله دې کبله ډېر پوهان او د فکر خاوندان وهڅېدل تر څو خپلې پوهې او فکرونه ټولنې ته وړاندې کړي.
په دې ترتیب د اسلام د تمدن طلایي دوره وځلېده او لوی اسلامي فیلسوف ابونصر محمد بن محمد فارابي، د ختیځو سیمو د حکیمانو خاتم شیخ الرئیس ابوعلي حسین بن عبدالله بن سینا، لوي متفکر

رياضي پوه او تکړه ستوری پېژندونکی ابوريحان محمدبن احمد خوارزمي، د دري پارسي شاعرانو لوی استاد جعفربن محمد رودکي، شاعر، استاد او تکړه حکيم ابوالحسن شهيد بلخي، د امير منصور ساماني وزير او د بلعمي تاريخ ليکونکی محمد بن عبدالله بلعمي، د لومړي منصور ساماني تکړه وزير، جغرافيه پوه او (اشکال العالم) د کتاب ليکونکي ابو عبدالله احمد بن محمد جيهاني، وروسته له اسلامه د دري پارسي لومړنۍ شاعره رابعه بلخي چې پلار يې د (زينت العرب) لقب ورکړی و، او لسګونو نورو پوهانو او هوښيارانو په دې دورې کې استوګنه درلوده او کتابونه يې وړاندې کړل.



## په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په ډله ييزه توګه د نقشې پر مخ ساماني قلمرو او پولې په ګوته کړي او د دې دورې د پوهانو او عالمانو نومونه دې وليکي.



## پوښتنې

١- زموږ په هېواد کې سامانيانو څه ډول سابقه لرله؟

٢- د سامان خدات اولادونو ولې لوړې حکومتي څوکۍ ترلاسه کړې؟

٣- د سامانيانو تر ټولو مشهور پاچا څه نومېده او په څه ډول يې ساماني دولت د د بدبې اوج ته ورساوه؟

٤- د بغداد د عباسي خلفاوو او سامانيانو ترمنځ څه ډول اړيکه وه؟



## له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د سامانيانو د فرهنګي سياست په هکله يوه مقاله وليکي، په راتلونکي درسي ساعت کې دې ترټولو غوره مقاله د ښوونځي په تابلو کې وځړول شي، چې نور زده‌کوونکي ورنه ګټه واخلي.

# غزنویان او سلجوقیان

ترکان د هغو قومونو له ډلې څخه وو چې په مرکزي آسیا کې اوسېدل، له یادو شوو قومونو سره د سامانیانو د حکومت په دورې کې ډېرې اړیکې ټینګې شوې نو له دې کبله د ترکانو ځینې ډلې د اسلام په سپیڅلي دین مشرفې شوې او د ترکانو ځینې سرداران او مشران د ساماني دولت د چوپړ په لاره کې لوړو حکومتي مقاماتو او په ځانګړې توګه نظامي منصبونو ته ورسېدل.

یو هم له دې مشرانو څخه الپ تګین نومېده چې د سامانیانو له خوا د خراسان یا افغانستان د سپه سالارۍ دنده ورته سپارل شوې وه. نوموړی د غزنویانو د لړۍ بنسټګر بلل کېږي.

زموږ دهېواد په تاریخ کې د ترکانو په نامه درې لړۍ (غزنویان، سلجوقیان او خوارزم شاهیان) مشهور دي. په دې لوست کې به د ترکانو دوې مهمې کورنۍ (غزنویان او سلجوقیان) وپېژنئ.

د غزنویانو دولت




## غزنویان

زموږ په هېواد کې د غزنه (غزنین یا غزني) ښار په ځانګړې توګه هغه وخت د اهمیت وړ وګرځېد چې د سامانیانو ترکي سردار الپ تګین په (۳۵۰ ق/ ۹۶۱ م) کال کې د امیر عبدالملک بن نوح د

مرگ په وخت کې په هغه توطئه کې ګډون وکړ چې غوښتل يې د خپلې خوښې شهزاده د واک ګدۍ ته ورسوي؛ خو ونه توانيد نو ځکه له خپلو لښکرو سره غزني ته لاړ او دغه ښار يې د خپل مرکز په توګه غوره کړ خو د غزنويانو واک د سبکتګين په نامه د يوه بل ترکي غلام په واسطه تثبيت شو. دغه سړی چې په اصل کې د مرکزي آسيا له ترکانو څخه و، له زنداني کېدو وروسته د الپ تګين له خوا و اخسيستل شو او د نومړي د هوښيارۍ له کبله د الپ تګين د پام وړ وګرځيد، تر هغه ځايه چې د نومړي د ساتونکو مشري ور په غاړه شوه او د الپ تګين له لور سره يې واده هم وکړ.

## سبکتګين

په (۳۵۲ق/ ۹۶۳م.) کال کې د الپ تګين له مړينې وروسته د ده زوی ابو اسحاق ابراهيم درې کاله او بيا د ده وروسته بلکاتګين د لسو کلونو لپاره د غزني اداره په غاړه لرله او دوی د الپ تګين خلاف د سامانيانو سره خپلې اړيکې ټينګې کړې.

خو د غزني کمزورې ادارې او په غزني باندې د لويکيانو اونورو مخالفينو احتمالي لاس بري، ترکي افسران او سرتېري دې ته وهڅول تر څو سبګتګين د الپ تګين زوم د خپل امير په توګه وټاکي.

د نومړي د واکمنۍ موده په (۳۶۶ق، ۹۷۶ م) کال کې پيل او په (۳۸۷ق،۹۹۷م) کال کې د ده له مړينې سره يو ځای پای ته ورسېده او نومړي په دې دورې کې د غزنويانو حکومت ځواکمن کړ.

سبګتګين بُست او قصدار په خپل قلمرو کې دننه او همدارنګه د دې حملو په ترڅ کې يې د افغانستان مشهور پوه او اديب ابوالفتح بُستي هم خپل چوپړ ته حاضر کړ.

دهندوستان په لور يې هم لښکر کښۍ وکړې. چې برسېره پر ديني اعتبار غزنويانو ته ډېر غنيمتونه هم په لاس ورغلل. او د حکومت ساحه يې د هندتر جيپال پورې ورسېده.

سبکتګين د هېواد د ادارې لپاره، ايالتونه د خپلې کورنۍ د غړو ترمنځ وويشل چې ډېر مهم ښار (نيشاپور) يې خپل زوی ابوالقاسم محمود، بُست يې بل زوی نصر او همدارنګه غزني او بلخ يې بل زوی اسماعيل ته وسپارل.


سلطان محمود غزنوي

## سلطان محمود غزنوي

د سبکتګين له خوا اسماعيل (د سبکتګين د لور له خوا لمسي) ته د بلخ او غزني حکومت سپارل، د ده او محمود غزنوي (چې يو تکړه او په کار پوه سړی و)، د اختلاف لپاره يې زمينه مساعده کړه. نو په دې توګه څه وخت چې په (۳۸۷ق/ ۹۹۷م) کال کې سبکتګين مړشو، نومړي خپل ورور له واکه لېرې کړ او د غزنوي

دولت اداره یې پخپله غاړه واخیسته. د محمود غزنوي منظم سیاست په افغانستان او د هغه په شاوخوا کې د سیمه ییزو حکومتونو په له منځه وړلو ولاړ و او دې کار د ده واکمني ځواکمنه کړه. په دې توګه چې سیستان، غرجستان (هزاره جات)، ګوزګانان (جوزجان)، چقانیان او خوارزم د غزني دربار اطاعت ته غاړه کېښوده.

## فتوحات

زموږ د هېواد په تاریخ کې محمود غزنوي څکه د ستر فاتح په توګه پېژندل شوی چې ده زیات فتوحات په ځانګړې توګه د هندوستان په لورې تر سره کړي دي. نوموړي د بېلابېلو دلایلو له مخې په هندوستان باندې یرغلونه تر سره کړل، د اسلام خپرېدل او هغه قیمتي غنیمتونو چې د هندوستان په معبدونو او بت خانو کې ساتل کېدل لاسته راوړل.

د محمود غزنوي د یرغلونو په پایله کې یې په هندوستان کې د اسلام د سپېڅلي دین رېښې وغځولې او همدارنګه ډېر زیات غنیمتونه د غزنوي ترکانو سرتېروته لاسته ورغلل. په ځانګړې توګه د هندوستان په ګوجرات کې په (٤١٦ق/١٠٢٥م)کال کې د سومنات بت فتحه کړ چې د هند د ډېرو لویو او مشهورو بتانو له ډلې څخه و. د غه کار د سلطان محمود غزنوي او د ده د سرتیرو د ډېر شهرت لامل وګرځېد. د هند په لور د لشکر کښیو په اړه د پام وړ خبره دا ده چې دا کار د غزنوي دولت د سرتېرو لپاره بوختیا وه چې په دې توګه غزنوي دولت له هغو خطرونو څخه په امن پاتې شو کوم چې د سرتېرو او افسرانو له پلوه ورته متوجه و. په هرحال، د سلطان محمود غزنوي فتوحات چې په هره انګېزه تر سره شوي، د هندوستان په سیمه کې په تېره بیا د اسلام د خپرېدو په برخه کې ډېر اغېزمن وو او د اسلام دین چې مخکې تر ملتانه رسېدلی و، د غزنویانو په دوره کې د هند تر ډېرو نورو سیمو پورې ورسېد.

## د سلطان محمود غزنوي ځایناستي

سربېره پر دې چې سلطان محمود غزنوي د خپل حکومت په منځنیو کلونو کې د مسعود په هکله مناسب نظر درلود او نوموړی یې خپل ولیعهد وټاکه خو د ژوند په وروستیو کلونو کې په مسعود باندې بدګمانه شو او د ده په ځای یې خپل بل زوی (محمد) ولیعهد وټاکه، د دې لپاره چې د ده زړور او مېړنی زوی (مسعود) له مرکز څخه لیرې لاړ شي نو د ری او (تهران) او جبال (د ایران لویدیځ) ایالتونو مشر یې وټاکه.

سلطان محمود غزنوي په (٤٢١ ق/١٠٣٠ م) کال کې مړشو او محمد د خپل پلار په غوښتنه په غزني کې پر تخت کښیناست.

محمد له خپل ورور (مسعود) سره د واک د وېش غوښتنه رد کړه خو مسعود په بریالیتوب سره له تهران څخه د نیشاپور په لور پرمختګ وکړ او د (روژې٤٢١ق/ سپتمبر ١٠٣٠ م) کال کې هغه




وخت چې د غزني لښکرو خبر ترلاسه کړ چې د خراسان لښکرو مسعود د پاچا په توګه اعلان کړي نو د دې خبرې په اوریدو سره يې بې له ځنډه محمد له واکه لېرې کړ.

مسعود غزنوي د خپلې پاچاهۍ په وخت کې له مخالفینو او سرغړوونکو سره زیاتې جګړې وکړې.

نوموړي د خپل پلار ډېر شمېر هغه ملګري ووژل او یا يې زنداني کړل چې د ده په اند د نوموړي د ځایناستي په نه قبلولو کې يې د ده له پلا رسره سلا وه. په حکومت کولو کې يې هم استبدادي لاره غوره کړه او په خلکو يې زیاتې ماليې و ټاکلې. او له بلې خوا د سلجوقي کورنۍ په مشرۍ د اغز د ترکمنانو نوي واک نوموړی لاکمزوری کړ او په پای کې په هغه جګړه کې چې په (۴۳۱ق/۱۰۴۰م) کال په روژې کې د يادوشوو ترکمنانو او غزنويانو ترمنځ سرخس ته نژدې د دندانقان په سیمه کې وشوه. غزنويانو سخته ماته وخوړه مسعود غزنوي له دې ځايه د غزني په لور تېښته وکړه او څرنګه چې نوموړي فکر کاوه چې د ترکمنانو تر ښارني لاندې نه شي، نو ځکه له خپلې کورنۍ او خزانو سره د هند په لور وتښتېد. مسعود په (۴۳۲ق/۱۰۴۱ م) کال کې په هغه توطئه کې ووژل شو چې د نوموړي د ورور محمود له خوا ورته برابره شوې وه. له دې وروسته غزنويان د (۱۳۰) کلونو لپاره په واک کې پاتې شول خو د دوی واکمني د افغانستان په ځينو سیمو او همدارنګه د بلوچستان او پنجاب په يوې برخې پورې محدوده شوه.

## غزنوي پاچاهان

نوم

الپ تګین

سبکتګین

اسماعیل بن سبکتګین

سلطان محمود غزنوي

محمد بن محمود

سلطان مسعود

مودود بن مسعود

مسعود بن مودود

بهاالدوله علي بن مسعود

## سلجوقیان

سلجوقیان په اصل کې د اغز له ترکمنانو څخه شمېرل کېږي چې د اتمې هجري پیړۍ په ترڅ کې یې د خوارزم (ارال) بحیرې او د سیر دریا سیمې ته کډې وکړې.

دسلجوقي کورنۍلوی نیکه دقاق(تقاق)نومېده.نوموړی د ترکي پاچاهانو په خدمت کې حاضر و او سلجوق هم د همدې (دقاق) زوی د ترک پاچاهانو په خدمت کې شپې ورځې تېرولې.



د سلجوقي دولت د واکمني سیمې

ویل کېږي چې دی او کورنۍ یې په (۳۸۲ق./۹۹۲ م.) کال کې مسلمان شول. د سلجوق درې زامن اسرائیل، میکائیل او موسی په نومونو د ماوراءالنهر لورته کډوال شول او هلته یې د سامانیانو خدمت ته غاړه کېښوده. خو د سلطان محمود غزنوي له خوا د اسرائیل نیول او د هندوستان کالنجر په زندان کې وروسته له اوو کلونو بند څخه د ده مړینه، د ترکمني سلجوقیانو او ترک غزنویانو تر منځ اړیکې خرابې کړلې او په ځانگړي توگه د سلطان مسعود غزنوي سیاستونو دوی ته دا زمینه برابره کړه

چې سیاسي او نظامي واکمني ترلاسه کړي. دوی په (۴۲۹ق/۱۰۳۸م.) کال کې د خراسان مشهور ښار نیشاپور ونیو. او وروسته یې د جګړې په ترڅ کې د دندانقان په سیمه کې د سلطان مسعود غزنوي ځواکونو ته سخته ماته ورکړه، په دې جګړه کې د سلجوقیانو د جګړې مشري د مېکائیل زوی طغرل بېګ په غاړه لرله چې نوموړي سربېره په نېشاپور د ماوراءالنهر، افغانستان او اېران نور مهم ولایتونه هم لاسته راوړل.

طغرل بیګ د سلجوقي حکومت د لړۍ بنسټګر ګڼل کېږي او تر (۴۵۵ق/۱۰۶۳ م) کا ل پورې یې واکمني وکړه. له (۲۶) کلونو واکمنۍ وروسته د ده له مړینې سره سم د نوموړي وراره الپ ارسلان واکمنۍ ته ورسېده. نوموړي خواجه نظام الملک خپل وزیر وټاکه د دې پوه وزیر په هڅو سره یې دولت او سلجوقي نظام له ښه کورني ثبات څخه برخمن شو او په بهرنۍ برخه کې یې په (۴۶۲ق/۱۰۷۰ م) کال کې د وان او ارزروم د بحیرې په منځ کې د ملازجرد په مشهوره جګړه کې رومیانو ته ماته ورکړه. د روم قیصر دیوژن رومانوس یې اسیر او کوچنۍ آسیایي تر لاسه کړه.

الپ ارسلان په (۴۶۵ق/۱۰۷۳م.) کال کې د خوارزم په لاره کې ووژل شو او له ده څخه وروسته د نوموړي زوی ملک شاه سلجوقي د خواجه نظام المُلک په هڅو واکمنۍ ته ورسېد. نوموړی نه یوازې په کورنیو ګډوډیو برلاسی شو، بلکې د سلجوقي دولت ترواک لاندې سیمه یې د ختیځ لورته ترچینه او لویدیځ لورته د مدیترانې ترسمندره پورې ورسوله.

د ملک شاه حکومت د خواجه نظام الملک په ایسته کولو او د تاج الملک قمي په راوستلو سره د کمزورۍ خواته روان شو او په (۴۸۵ق/۱۰۹۲ م) کال کې د نوموړي له مړینې سره سم د ده د کورنۍ د غړو ترمنځ د واکمنۍ د لاسته راوړلو په موخه جګړې پیل شوې او دغه جګړې د دې لامل شوې چې د سلجوقیانو سیمې د شهزاده ګانو ترمنځ ووېشل شي او هر شهزاده د خپل وزیر او سرپرست چې (اتابک) به ورته ویل کېده، په مرسته ولایت اداره کاوه.

اتابکانو هم له څه مودې وروسته د خپلواکۍ خوبونه ولیدل او همدارنګه د ایران په آذربایجان او لرستان کې یې خپلواکه لړۍ رامنځته کړه. د سلجوقیانو د واکمنۍ ختیځې سیمې، افغانستان چې د سلطان سنجر تر واک لاندې راغی او نوموړي له ډېر اخ او ډب وروسته مروه خپله پلازمېنه وټاکله. خو له (۴۲) کلونو واکمنۍ وروسته په (۵۵۲ق/۱۱۵۷م) کال کې د نوموړي له مړینې سره سم، د ختیځو سلجوقیانو کورنۍ هم کړه لاره ځانته غوره کړه او څرنګه چې سلطان سنجر ځایناستی نه درلود، نو د نوموړي خوري رکن الدین محمود په (۵۵۷ق/۱۱۶۲ م) کا ل کې د افغانستان او ماوراءالنهر په ځینو برخو واک وچلاوه. خو په دې کال کې د یوه سلجوقي سردار له خوا ونیول شو او بیا ړوند شو.

له دې وروسته افغانستان او ماوراءالنهر د غوري او خوارزم شاهي پاچاهانو ترمنځ د کرکېچونو ډګر شو.




## په دې دورې کې اقتصاد او فرهنگ

د محمود غزنوي فتوحاتو په ځانګړې توګه سر بېره د اسلام د دین په خپرېدو ډېره شتمني یې هم غزنویانو ته ورکړه؛ ځکه د دې یرغلونو په ترڅ کې ډېر غنیمتونه د دوی په برخه شول. چې د دې شتمنیو په وسیله د غزني ښار ودان او آباد شو، د غزني په ښار کې ډېر جوماتونه، کتابتونونه او ماڼۍ ورغېدې. د غزني جومات د دبدبې په هکله ویل کېږي چې د بغداد له جومات سره برابر و.

د غزنویانو په وخت کې د ماڼیو جوړول هم دود وو او ویل کېږي چې سلطان مسعود غزنوي یوازې د اوو میلیونو درهمو په بیه یوه ماڼۍ جوړه کړه چې د ودانۍ او جوړولو کارونو یې څلورو کلونو پورې دوام وکړ. د پلونو جوړولو په برخه کې هم د پام وړکارونه تر سره شول او د سلطان محمود غزنوي له خوا د جیحون رود پر سر د زنځیرونو د پیوسته کولو په واسطه په (۱٦-٤۱۵ق/۲۵-۱۰۲٤م) کال کې د زورقي پله جوړول د غزنویانو د دورې له غوره نوښتونو څخه ګڼل کېږي.

زموږ په هېواد کې د کرنې په برخه کې د غزنویانو څخه د مخکنیو دورو په پرتله زیات توپیر ترسترګونه شو خو د غزنویانو له خوا د حاصل خیزو ولایتونو لاندې کولو او د پریمانه غنیمتونو لاسته راوړلو د غزنوي دولت د عوایدو کچه لوړه کړه دغه عواید په کا ل کې څه د پاسه سلو مېلیونو درهمو ته ورسېد.

له فرهنګي پلوه د غزني د ښار پرمختګ، د علومو د غوړېدو او دودېدو عامل وګرځید، په داسې کچه چې د سلطان محمود غزنوي په وخت کې د غزني ښار د دارالعلم حکم ترلاسه کړ او ویل کېږي چې د پوهانو سربېره د ده په دربار کې څلور سوه شاعران هم اوسېدل.

د غزنویانو دورې د نامتو پوهانو اوشاعرانو له ډلې څخه د لاندې کسانو نومونه د یادونې وړ دي. د نجوم، ځمکپوهنې او عقایدو په برخه کې نامتو پوه ابوریحان البېروني، ریاضي پوه ابوالحسن علي بن احمد نسوي، ابوالقاسم حسن عنصري، ابوالنجم احمد منوچهري، عبدالعزیز عسجدي مروزی او ابوالقاسم فردوسي او سلجوقیان هم سره له دې چې د فرهنګ او تمدن له پلوه بیرته پاتې وو او تراوسه یې خپل قبیلوي خویونه نه وو هېر کړي، دوی هم د سیمه ییزو وزیرانو او پوهو شخصیتونو څخه غوښتنه وکړه ترڅو د حکومتدارۍ په برخه کې ورسره مرسته وکړي، په دې توګه یې غوښتل چې د قبیلوي نظام د زیانونو کچه راټیټه کړي.





په دې دورې کې املاك او کرنيزې ځمکې د واکمنو له خوا هغو خلکوته ورکړل شوې چې په سلجوقي کورنۍ پورې يې اړه درلوده، له دې کبله د کرنې برخه زيانمنه شوه. خو په دې دوره کې د جوماتونو او قبرونو بيا رغونه د ځانګړي مذهبي ارزښت لرونکې وه، د ښوونې او روزنې لپاره د (نظاميه) په نامه مدرسې هم د هېواد په بېلابېلو برخو کې جوړې شوې. د دوی د آباديو له ډلې څخه د جوزجان په سرپل کې د امام خرد زيارت، د بلخ په دولت آباد کې يو منار او په بلخ کې د بابا حاتم زيارت يادولای شو. د نورو فرهنګي بدلونونو له ډلې څخه د ترکي اداري اصطلاحاتو دودېدل لکه کوتوال (د کلاګانو سرمشر)، باسقاق (د ماليې اخيستلو مامور) او همدا راز د رنګارنګ او ارزښتمنو جامو دودېدل.

همدارنګه سلجوقيان د دري او فارسي ژبې د جدي خدمت کوونکو څخه شمېرلای شو ځکه نوموړې ژبه د دوی په وسيله عراق، اذربايجان او کوچنۍ آسيا (اوسنۍ ترکيې) ته ورسېدله.

د سلجوقي دورې د مشهورو فرهنګي او علمي څېرو نومونه په لاندې توګه يادولی شو:

حکيم مجدود چې په سنايي غزنوي مشهورو، خواجه عبدالله انصاري، شيخ محمد غزالي او همدارنګه شاعره او هنرمنده مېرمن منيژه مهستي.



## په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو (الف) او (ب) ډلو ووېشل شي، د الف ډله دې د غزنويانو په دورې کې د غزني د پرمختګ او آبادۍ علتونو او (ب) ډله دې د سلجوقيانو په دورې کې زموږ د هېواد د فرهنګي پراختيا د علتونو په برخې کې يو له بل سره خبرې اترې وکړي.

## پوښتنې



۱- ولې سلطان محمود غزنوي په هندوستان کې له فتوحاتو سره مينه درلوده؟

۲- د سلطان محمود غزنوي ځايناستی څه نومېده او سلطان مسعود څه ډول ماته وکړه؟

۳- سلجوقيان په اصل کې له کومو خلکو څخه دي او په څه ډول يې دولتي واکمني ترلاسه کړه؟

٤- د سلجوقي دولت تر ټولو مهم وزير څه نومېده؟



## له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د ابوريحان البيروني او خواجه عبدالله انصاري د آثارو په هکله يوه مقاله وليکي او تر راتلونکې لوست دې ټولګي ته وړاندې کړي.

# غوریان او خوارزم شاهان

غوریان او خوارزم شاهیان زموږ د هېواد او سیمې د تاریخ هغه واکمن کورنۍ کېږي چې د ځانګړي ارزښت او نقش څخه برخمن وو. غوریانو هغه وخت چې په غور کې د سلطنت بنسټ کېښود، نو هندوستان یې هم تر خپلې ولکې لاندې راوست. خوارزم شاهیان سره له دې چې د ترکي سلسلو او د ماوراٌ لنهر په شمال کې خوارزم ته منسوب وو خو زموږ هېواد یې هم تر واک لاندې و.
زموږ په هېواد کې د یادو شوو لړیو ترولکې لاندې، د وضعې څېړنه د دې لوست موضوع ده، ورسره به آشنا شئ.

## د غوریانو دولت






د سلطان غیاث الدین او سلطان شهاب الدین غوری په زمانه کې د افغانستان د غوریانو د امپراتوری پولې

غوریان چې زمونږ د هېواد افغانستان په مرکز کې له غور څخه پاڅېدل، په اصل کې یې رېښه ملك شنسب ته رسېږي. نوموړي په غور کې امارت درلود، منهاج السراج جوزجاني د (طبقات ناصري) په کتاب کې د ملك شنسب په اړه ویلي دي: نوموړی د اسلام په لومړیو کې ژوند کاوه او په داوطلبانه توګه یې د حضرت علي رضی الله عنه په دورې کې د نوموړي په واسطه د اسلام په سپېڅلي دین مشرف شو او همدارنګه د امارت دوه سمبولونه (عهد او لوا) ده ته ورکړل شول.





غوري شاهان د ځانګړي جغرافیوي موقعیت او د سیمې د ډېرو لوړو ژورو په لرلو سره، له هماغه لومړیو څخه د نسبي خپلواکۍ لرونکي وو، ډېر پاچاهان او هېواد نیوونکي و نه توانېدل چې دا سیمه لاندې کړي. غوریانو له عباسي نهضت سره فعاله



د غور جام منار

ونډه واخیسته او امیر فولاد غوري له ابومسلم خراساني سره مرسته وکړه.

خو لومړی کس چې له هارون الرشید څخه یې (عهد او لوا) ترلاسه کړل، امیر بنجي نهاران نومېده. نوموړی وروسته له امیر فولاد څخه د غور دویم څواکمن امیر بلل کېده.

د غور له امیرانو څخه محمد سوري د سبکتګین او د ده د زوی سلطان محمود غزنوي هم عصره و چې په کلکه به د زوی او پلار د یرغلونو په وړاندې درېده. په پای کې سلطان محمود غزنوي په (٤٠١ق/١٠١١ م) کا ل کې په محمد سوري یرغل وکړ او هغه یې ونیوه. او د سلطان محمود غزنوي په بند کې له منځه لاړ؛ خو د غور واکمنې د سلطان محمود غزنوي له خوا د هغه زوی شیث ته ورکړل شوه. وروسته له دې غوریان د غزنویانو تر ولکې لاندې راغلل. سره له دې چې په خپلې سیمې کې خپلواکه وو، خو غزنویانو ته به یې باج ورکاوه. دغې وضعې د سلطان بهرام شاه غزنوي او سلطان سنجر سلجوقي تر پاچاهۍ پورې دوام وکړ. په دې دورې کې غوریانو د علاوالدین حسین تر مشرۍ لاندې په (٥٤٧ق/١١٥٢ م) کال کې له سلطان سنجر سلجوقي سره جګړه وکړه. خو علاوالدین حسین د سلطان سنجر سلجوقي له خوا ماته وخوره، بیا د غور مشرۍ ته ورسېد.

علاوالدین حسین له څه مودې وروسته پر غزني یرغل وکړ او غزني یې ونیو، خپل ورور سیف الدین یې د بهرام شاه غزنوي پر ځای په غزني کې حاکم وټاکه. له څه مودې وروسته د غزني خلکو د هغه پر ضد پا څون وکړ او د سیف الدین په وژلو سره یې یوځل بیا بهرام شاه غزنوي د پاچاهي پر تخت کېناوه.

علاوالدین حسین د غزنویانو د دې عمل څخه د غچ اخیستلو په نیت په (٥٥٦ق، ١١٦٠م)کا ل

کې هغه وخت چې د بهرام شاه زوی خسرو شاه واکمن و، په غزني یرغل وکړ. غزني یې ونیو او ویې سوزاوه له دې وروسته نوموړی په علاوالدین جهانسوز مشهور شو.

له علاوالدین څخه څه موده وروسته د هغه وراره غیاث الدین بن سام د غور واکمن شو او نوموړي د خپل زړور ورور شهاب الدین محمد بن سام په مرسته غزان ته چې د غزني حاکم و، ماته ورکړه او د غوریانو تر لاس لاندې سیمه یې له سند څخه تر کرمان پورې ورسوله سلطان شهاب الدین په (۵۷۹ق/ ۱۱۸٤ م) کا ل کې لاهور هم ونیو او د غزنویانو سلطنت یې په بشپړه توګه له منځه یوړ.


سلطان غیاث الدین غوري

د شهاب الدین د اقداماتو په ترڅ کې د غوریانو هېواد ډېر پراخ شو. په دې ډول د کسپین(خزر) سمندر له څنډو څخه نیولې بیا په هند کې د جمنا تر ساحله او له جیحون څخه تر بلوچستان پورې خطبه د سلطان غیاث الدین په نامه ویل کېده.

په (۵۹۹ق/ ۱۲۰۳م)کال کې د سلطان غیاث الدین له مړینې وروسته د نوموړي ورور شهاب الدین محمد چې د معزالدین په لقب مشهور و، پر تخت کېناست. خو دی په مرکزي آسیا کې د یوه بل ځواك سره مخامخ شو چې خوارزم شاهیان نومېدل. چې په پایله کې یې غوریانو ته ماته ورکړه او سلطان شهاب الدین هم په (٦۰۲هـ/ ۱۲۰٦م)کال کې د یوه مخالف له خوا ووژل شو.

د غوري حکومت کمزوري د غیاث الدین محمد د زوی غیاث الدین محمود له زماني راپیل شوه او امپراطوري یې د دوه ټوټې کېدو په لور روانه شوه.

څرنګه چې قطب الدین ایبک په ډهلي او ناصر الدین په سند کې د خپلواکۍ بیرغونه اوچت کړل نو ورو ورو غوري دولت یوازې په غور پورې محدود شو.








## خوارزم شاهان

خوارزم چې په لرغونو متونو کې هوا زرمیا راغلی د هغې سیمې نوم دی چې د جیحون سیند د لوړې برخې او دکسپین (خزر) د بحیرې شمالي څنډې ترمنځ پرته ده. او خوارزم شاهان د دې سیمې او سېدونکو ته ویل کېږي. دوی هم د سیمه ییزو اسلامي حکومتونو د پاڅونونو په موده کې د خپلواکۍ بیرغ اوچت کړ او د ځانګړې حکمرانۍ لړۍ یې رامنځته کړه.

د خوارزم شاهانو لومړنۍ څېره انوشتګین غرجه نومېده چې په اصل کې د افغانستان په مرکز کې له غرجستان (اوسني هزاره جات) څخه و، نوموړی د هغو خدمتونو په بدل کې چې سلجوقي دولت ته یې ترسره کړل. لوړو مقامونو ته ورسېده چې په پای کې حتی د خوارزم امارت ور په برخه شو. د انوشتګین غرجه له مړینې وروسته د ده زوی محمد په (۴۹۱ق/ ۱۰۹۸ م) کال کې د سلطان سلجوقي له خوا د خوارزم حکمران وټاکل شو.


د خوارزم شاهیانو د دولت پرچم

محمد د لومړي ځل لپاره په ځان د (خوارزم شاه) نوم کېښود او د ټول عمر لپاره یې خپل حکومت د (سلطان سنجر سلجوقي) په ملاتړې پر مخ بیولو خو د ده زوی (اتسز) چې پوه او د فضیلت خاوند و، څه وخت چې په (۵۲۲ق/ ۱۱۲۸ م)کال کې د خوارزم مشر شو، نو د سلجوقي حکومت څخه یې د خپلواکۍ لپاره هڅې وکړې.

نومورړي په (۵۳۵ق/۱۱۸۱م) کال کې د سلجوقيانو نوم له خطبې او سکې ايسته کړ، او په بشپړه توګه يې خپله خپلواکي اعلان کړه او هڅه يې وکړه چې د نويو سيمو په لاندې کولو سره خپله تر لاس لاندې جغرافيايي سيمې پراخه کړي.

د خوارزم شاهانو پياوړي اميران عبارت وو له علاوالدين تکش او علاوالدين محمد څخه و چې په ځانګړې توګه د علاوالدين د حکومت په دورې کې د خوارزم شاهي دولت تر ولکې لاندې سيمې خپل اعظمي حدته ورسيدې. د غوريانو حکومت هم په (۶۰۲ق/۱۲۰۶ م)کا ل کې د علاوالدين له خوا ړنګ شو. او په دې توګه د سند د سيند تر څنډو پورې د خوارزم شاهانو واکمني وغزېده. سره له دومره پراختيا، بيا هم خوارزم شاهي دولت ډېره موده پاتې نشو. ځکه له يوه پلوه يې له عباسي خليفه سره اړيکې ښې نه وې چې په پايله کې ناصر الدين الله د خوارزم شاهانو له مخالفينو څخه ملا تړ وکړ او له بله پلوه مغولانو د چنګېزخان تر مشرۍ لاندې د دوی سيمه په (۶۱۷ق/۱۲۲۱ م)کال کې تر يرغل لاندې ونيوه. مغولو د خوارزم ښار ونيوه چې په دې ترتيب د خوارزم شاهي دولت او واکمنۍ د له منځه وړلو موده راورسېده.

علاوالدين محمد خوارزم شاه له مغولو څخه وتښتېده او د مازندران سيند يوې جزيرې ته يې پناه يوړه. او هماغلته مړ شو، خو مخکې تر مړينې يې خپل زوی جـلال الدين خپل ځايناستی وټاکه. نومورړي د مغولو پر وړاندې ډېر مقاومت وکړ خو د پروان په جګړه کې يې له دوی څخه ماتې  وخوړه او سند ته وتښتېد. يو ځل بيا يې سند ته نژدې د چنګېزخان له خوا ماتې وخوړه او ډهلي ته يې پناه يوړه، يو ځل بيا يې د کرمان او شيراز له لارې ځان اصفهان او آذربايجان ته ورساوه خو په پای کې په (۶۲۷ق/۱۳۳۰م)کال کې د کردانو له خوا ووژل شو او خوارزم شاهي حکومت هم د ده له مرګ سره د تاريخ يوه برخه وګرځيده.

## اقتصادي او فرهنګي وضع

د پرله پسې يرغلونو، لښکر کښيو او دوامداره جګړو په دليل که څه هم دا سيمه دومره د اقتصادي ودې او غوړيدنې لپاره مناسبه نه ده خو بيا هم زموږ خلکو به په دې دورې کې د کرنې، زراعت او توليدول له لارې خپلې لومړنۍ اړتياوې پوره کولې. وربشې، غنم، وريجې، پنبه، انګور، مميز، بادام، پنير يې توليدول. همدارنګه د هېواد له ځينو کانونو څخه سره زر، سپين زر، اوسپنه، مس، سرب او نوشادر استخراجېدل. او کوچنۍ صنايع، لکه: نساجي، چرم جوړونه، قالين او بدنه او وسله جوړول دود وو، دا دوره د پوهې او فرهنګ په برخې کې، د ساماني او غزنوي دورو ادامه بللې شوې ده. سره له دې ټولو، په ځانګړې توګه غوريانو ودانيو او آباديو ته پاملرنه وکړه او ځينې جوماتونه، کلاګانې او ودانۍ يې جوړې کړې.

د دوی د ودانيو له ډلې څخه د پام وړ عمرانات يو هم د هرات جامع جومات دی چې د غياث الدين محمد غوري په دورې کې يې کار پيل شو. بل په غور کې د جام منار چې ۶۴ متره لوړوالی لري د محمد غوري په نامه د يوه ډېرليک په لرلو سره د غور د جام په سيمې کې واقع دی چې د نړۍ له لويو منارونو څخه ګڼل کيږي.





له بلې خوا غوریان د مذهبي تسامح (آسانۍ) په برخه کې مشهور وو او د دوی دربار د بېلابېلو دیني او مذهبي ډلو او فرقو د پوهانو او عالمانو د ټولېدو ځای ګڼل کېده.ددې د پوهانو او عالمانو د جدي ملاتړو له ډلې څخه بلل کېدل.

دوی پوهانو او عالمانو ته په درنه او د قدر په سترګه کتل. غوري امیرانو د علم او ادب سره دومره مینه لرله، هغه وخت چې علاوالدین جهانسوز د محمود غزنوي او د ده د ځایناستو ښایسته ودانۍ ړنګولې په همغه حال نوموړي هغه شعرونه چې د دې ماڼیو په هکله ویل شوي وو، ټول یې په سرو زرو واخیستل او په خپل کتابتون کې یې کېښودل.

خوارزم شاهانو هم د ادیبانو او شاعرانو د ملاتړ سیاست وپاله او دا خبره مشهوره ده چې استز خوارزم شاه، د خپل انشا د دېوان مشرۍ لپاره رشید الدین محمد وطواط بلخي غوره کړ.

او دغه هنرمند شاعر چې په عربي او فارسي، نظم او نثر کې یې لوی لاس درلود، (حدائق السحر في دقایق الشعر) کتاب یې د ده په لارښوونې ولیکه. دغه کتاب د معاني، بیان او د وینا د لفظي او معنوي صنایعو په برخه کې ولیکل شو. همدارنګه سیده بیګم (علویه) د کمال او فضل خاونده او د دېوان لرونکې شاعره په همدې وخت کې اوسېدله. نوموړې د وطواط بلخي د شعرونو په ځواب کې شعرونه ویلي دي.

علاوالدین محمد سره له دې چې یو بې رحمه او د تدبیر او سیاست نه لرونکې څېره وه خو د یوه علم پال او ادب پالي څېرې په توګه پېژندل شوی او ویل کېږي چې نوموړی دیندار او علم دوست پاچا و.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې، له جغرافیوي نقشې څخه په ګټه اخیستنې سره د غور په تاریخي ارزښت خبرې وکړي.

## پوښتنې



۱- غوریانو ولې په عباسي نهضت کې ګډون وکړ؟

۲- د غور د مهمو امیرانو نومونه واخلئ.

۳- د سلطان سنجر سلجوقي په خنګ کې د انوشتګین غرچه او علاوالدین حسین د سیاستونو توپیر څه و؟

٤- رشیدالدین وطواط بلخي په کومه زمانه کې اوسېده او ترټولو مهم کتاب یې څه نومېده؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د افغانستان په تاریخ کې د غوریانو ونډه (نقش) په هکله مقاله ولیکي او په راتلونکې درسي ساعت کې دې ټولګي ته وړاندې کړي.





# مغول او آل کرت

زموږ په هېواد باندې د مغولو يرغلونه زموږ د سيمې د تاريخ له مهمو پېښو څخه ګڼل کېږي. دغه يرغلونه چې د مغولو په برلاسی او بريالیتوب پای ته ورسېدل زموږ د ټولنيز، سياسي، اقتصادي او فرهنګي ژوند په بېلابېلو برخو کې يې بېلا بېلې پايلې رامنځته کړې. د مغولو د برلاسی څرنګوالی او د دوی د واکمنی په دوره کې د کرتي دولت رامنځته کېدل، هغه موضوعګانې دي چې په دې لوست کې به يې ولولئ.

## د مغولو د لومړنی واکمنی جوړښت

مغول په اصل کې د زېړ پوستو قومونو څخه وو چې د مرکزي، ختيځې آسيا په ځينو برخو کې اوسېدل. دغه قوم له بېلابېلو ډلو څخه جوړ شوی دی او تر ټولو مهمې ډلې يې: تاتار، قيات، جلاير، قنقرات او کرائيت دي. دوی قبيلوي او د کډوالی ژوند کاوه. او تر هغه پورې چې يسوکابها در (د چنګيزخان پلار) په شپږمه هجري/ دولسمه ميلادي پيړۍ کې دوی سره متحد کړي نه وو، په جګړو او شخړو کې ښکېل وو.

وروسته د ده له مړينې، د نوموړي زوی (تموچين) د مغولو مشري ترلاسه کړه. تموچين د شپږمې پېړۍ په پای کې د مغولي قومونو په لويه غونډه کې د چنګېز خان لقب ترلاسه کړ. نوموړی وتوانېد چې د (اوومې هجري/ ديارلسمې ميلادي) پېړۍ تر لومړيو پورې په منځنۍ آسيا کې زياتره مغولي قومونه د خان تابع کړي.

په چين کې د مغولو د پرمختګ او لاس اچونې خبر د سلطان محمد خوارزم شاه ترغوږه هم ورسېده او همدارنګه د چنګېزخان له پلوه يو پلاوی هم د خوارزم شاه دولت ته ولېږل شو چې په (٦١٥ق/ ١٢١٩م.) کال کې د چنګېزخان د استازي او سلطان محمد خوارزم شاه ترمنځ تړون لاسليک شو. خو د اترار ښار د حکمران له خوا چې د سلطان محمد خوارزم شاه له خپلوانو څخه و، د مغولي سوداګريز کاروان چور کول او د سوداګرو وژل، چنګېزخان ته ښه بهانه په لاس ورکړه چې په خوارزم شاهي دولت يرغلونه وکړي. نو په دې توګه په (٦١٦ق/١٢٢٠م.) کال کې د يرغل فرمان ورکړ شو، او په لسګونو زره مغولي سرتېري اسلامي سيمو ته ننوتل. وروسته د بخارا، سمرقند، خوارزم او مروې ښارونو د لوټولو او وژنو څخه زموږ د هېواد ځينې مهم ښارونه، لکه: هرات، غزني، کابل او باميان د مغولو په واسطه په سخته توګه ويجاړ او خلک يې ووژل شول. چې په دې توګه مغولي قومونه په افغانستان برلاسي شول او زموږ د هېواد په تاريخ کې يوه توره دوره رامنځته شوه.





چنګېز خان دخوارزم شاهي دولت تر لاس لاندې سیمو د نیولو وروسته، بېرته مغولستان ته وګرځېد. نوموړی په (٦٢٤ق./١٢٢٧م.) کال کې د تبت د شمال له نیولو وروسته د (٧٢) کلنی په عمر مړشو. د چنګېزخان د ځایناستو له ډلې څخه یو ځل بیا د منګوقاآن د واکمنی په وخت کې هلاکوخان ته دنده وسپارل شوه چې په اسلامي نړۍ یرغل وکړي. نوموړي خپل ماموریت په (٦٥١ق/١٢٥٣ م) کا ل پیل کړ. هلاکوخان په (٦٥٦ق/١٢٥٨م) کال کې د عباسي خلیفه (المعتصم با الله) په وژلو او د بغداد په نیولو سره د عباسیانو د خلافت (٥٢٥)کلنه واکمني ختمه کړه. وروسته له عراقه یې همدارنګه ګرجستان، ارمنستان او د کوچنی آسیا (اوسنی ترکیې) ښارونه هم ونیوه. هلاکوخان په (٦٦٣ق/١٢٥٣ م)کا ل کې وروسته له دې چې له جیحون نه د مصر ترپولو یې خلک د مغولو تابع وګرځول، مړشو.

له دې وروسته د اوسني ایران او د افغانستان د لوېدیځ یوه برخه د هلاکوخان د اولادونو یعنې مغولي ایلخانانو په لاس ورغله خو ماوراءالنهر او افغانستان (تخارستان، بلخ او زابل) د یوې بلې مغولي ډلې (جغتائیانو) په لاس کې ورغلې. د افغانستان په نورو برخو کې سیمه ییزو مشرانو واکمني چلوله.

## آل کرت




د مغولو په دورې کې یوله هغو سیمه ییزو حکومتو څخه چې د افغانستان په لویې برخې یـې واکمني کولـه آل کرت یـا کرتیان وو. د کرتیانـو اصـل او نسـب په هکله اختلاف موجـود دی. ځینې دوی په غوریانو پــورې تړي او ځینې نــور مورخین بیا د ربیع فوشنجي د هغه شعر له مخې چې د ملک فخرالدین کرت په ستاینه کې یې ویلی، نوموړي په سلجوقي او ترکمني پاچاهانو پورې تړي. د فوشنجیانو هغه شعر په لاندې ډول دی:

| | |
|---|---|
| قاعـــده دوده ســنجر تــويي | واسطه ملك ســكنــدر تويي |
| دوده سنجر زتو خواهد نويد | ملك سكندر به تو دارد اميد |

په هر حال، ملك ركن الدين د دې كورنۍ له مشهورو شخصيتونو څخه و. نوموړی د تاج الدين مرغني زوی و چې د غوريانو له خوا په قلعه خيسارکې گمارل شوی و.

د مغولو د يرغلونو په وخت کې، هغه د غور او غزني د ځينو برخو سر لښکر و او څرنگه چې د چنگيزخان د فتوخاتو آوازه يې واورېده نو د اطاعت لاره يې غوره کړه چې په دې توگه نوموړي ته د غور ولايت او شاوخوا سيمو حکومت وسپارل شو.

ملك ركن الدين د خپلې (۲٦) كلنې واكمنۍ په موده (٦٤٣-٦١٧ق/ ۱۲۲۰- ۱۲٤٥ م) کې د لور له پلوه لمسي (شمس الدين کرت) ته ډېره پاملرنه وکړه اونوموړی يې خپل ځايناستي وټاکه. او همدغه شمس الدين كرت چې وروسته له خپل نيكه واكمنۍ ته ورسېد، دكرتي اميرانو او مشرانو د لړۍ پيل بلل کېږي.

ملك شمس الدين هم دخپل نيكه په څېر د مغولو ملاتړی و او مغولو د نوموړي د دې کار په بدل کې ده ته د مهمو ختيځو ايالتونو مشري وسپارله چې د افغانستان يوه مهمه برخه د سند تر سينده پورې په کې شامله وه.



په هرات کې د اختيارالدين کلا

د ملك شــمس الدين زياتــره اولادونــو او ځايناســتې د مغولــو سره د مرستې سياست تــه دوام ورکــړ. ملك معزالدين حسين كرت كــه هر څــو لــه مغولو څخــه د خپلواكــۍ په لاره کې گامونــه پورته

کړل خو د مخالفینو په وړاندې د ناوړه چلند په لړلو او د بلخ، بادغیس او شبرغان د خلکو د وژلو او لوټولو په سبب د ډېرو پاڅونونو سره مخ شو او په پای کې د غوري حکومت له خوا له واکه وغورځول شو. د دې کورنۍ وروستی مشر ملک غیاث الدین د ملک حسین زوی و چې د امیر تیمور گورکاني په عصر کې یې ژوند کاوه. په (۷۸٤ق/ ۱۳۸۳م) کال کې د تیمور په امر ووژل شو او په دې ترتیب د آل کرت دولت هم زموږ د هېواد د تاریخ یوه برخه وگرځیده. د آل کرت امیرانو شمېر اته کسان وو او (۱۳۰) کاله یې واکمني وکړه.



### په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې د نقشې څخه په کار اخیستلو، د مغولستان موقعیت پیدا او د افغانتسان پر لور د مغولو د حرکت او نفوذ لاره پیدا کړي.



### پوښتنې

۱- د مغولو د مهمو قبیلو نومونه واخلئ.

۲- مغول د لومړي ځل لپاره د کوم تاریخي شخصیت په مشرۍ سره راغونډ شول؟

۳- د مغولو او کرتیانو ترمنځ څه اړیکې موجودي وې؟

٤- د مغولو په وړاندې د کرتیانو د سیاست په هکله څه پوهېږئ؟ څرگند یې کړئ.

۵- عباسي خلافت څه وخت او د کوم مغولي کس له خوا له منځه لاړ؟



### له ټولگي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې، د قبایلي ژوند د ځانگړتیاوو په اړه مقاله ولیکي او د ټولگي په راتلونکې درسي ساعت کې دې یې وړاندې کړي.

# تیمور گورګاني او د ده ځایناستی

تیمور ګورګاني هم د منځنۍ آسیا د غوسه ناکو نړۍ نیوونکو څخه و چې د چنګېزخان په څېر یې په سلګونو زره کسان مړه او د سمرقند په مرکزیت یې یوه پراخه امپراطوري رامنځته کړه، خو هغه اولادونه یې چې په ځانګړې توګه زموږ په هېواد یې واکمني وکړه، د پلار پر خلاف علمي او فرهنګي شخصیتونه وو او همدارنګه زموږ په هېواد کې د بېلابېلو پوهنو او هنرونو د رواجونکو څخه وو. په سیاسي او نظامي برخې کې د تیمور ګورګاني ټولې کار نامې او د هرات د تیموري دولت رامنځته کېدل به د دې لوست موضوع وي چې ورسره به بلد شئ.

مورخینو د تیمور نسب تومنای خان ته رسولی چې نوموړی د چنګېزخان له کورنۍ څخه و. تیمور په (۷۳۶ق/ ۱۳۳۶ م) کال کې د ازبکستان، سمرقند ته نژدې د کش په ښار کې وزیږېد. تر (۷۶۲ق/۱۳۶۱م) کال پورې د تیمور د ژوند په هکله سمه اطلاع نه لرو، پرته له دې چې ویل شوي نوموړي په هلکتوب کې علم او ادب زده کړل او په غیشو ویشتلو بوخت شو خو په ځوانۍ کې یې د امیر حاجي بر لاس په اداري دستګاه کې خدمت کاوه. څرنګه چې امیر حاجي په مرکزي آسیا کې د داخلي رقابتونو په لړکې، افغانستان ته وتښتېده، دی هم ورسره و. تیمور ډېر ژر ماوراءالنهر ته راوګرځېد او دا ځل د کاشغر له خان سره یو ځای شو. نوموړي ته د کاشغرخان د کش ښار اداره وسپارله. له دې نیتې وروسته د ده شهرت زیات شو او د نوموړي واکمني د ماوراءالنهر په ډېرو برخو کې پراخه شوه. ګورکاني (زوم) لقب یې هغه وخت غوره کړ چې د ماوراءالنهر د یوه امیر (امیر حسین قزغني) خور یې په نکاح کړه.

تیمور د امیر حسین قزغني په مرسته له ماوراءالنهر څخه د جغتایي ترکانو لاسونه لنډ کړل او څرنګه چې په (۷۷۱ق/ ۱۳۷۰ م) کال کې یې د بلخ په شاوخوا کې امیر حسین او د ده زوی ووژل نو د ماوراءالنهر په ځواکمن مشر بدل شو او سمرقند یې خپله پلازمېنه وټاکله.

## د تېمور يرغلونه

تيمور د (۷۳۳ق./ ۱۳۳۳م. او ۷۸۱ق/۱۳۸۰ م.) کلونو په منځ کې څلور ځله د خوارزم په هېواد پسې لښکرې وايستې او هغه يې ړنګ کړ. مغولستان او قبچاق دښته يې فتح کړه او خپل څوارلس کلن زوی (ميران شاه) د خراسان (افغانستان) لاندې کولو پسې ولېږه او په خپله هم پسې ورغی، نومړي هرات کې په پراخه ورانکاريو لاس پورې کړ. د ښار ټولې ودانۍ يې ړنګې کړې پرته د اختيارالدين له ارګ څخه او د يادولو وړ ده چې ډلې ډلې د نامه او اعتبار خاوندان لکه عالمان، فقيهان او پوهان يې په جبري توګه د سبز ښار ته ولېږل.

ملک غياث الدين کرتي که څه هم په لومړيو کې د تيمور له غوسې په امان پاتې شو خو په (۷۸۵ق/۱۳۸۳م) کال کې د تيمور په امر ووژل شو او د آل کرت د لړۍ پاڼه هم واوښته.

تيمور په خپله (۲۹) کلنه واکمنۍ کې د خپلو ډېرو سختو يرغلونو او حملو په پايله کې په سلګونو زره انسانان ووژل او له چين څخه تر مديترانې او همدارنګه د روسيې او مسکو د استپونو څخه تر ډهلي پورې سيمې يې ونيولې او د لويې امپراتورۍ بنسټ يې کېښود. د تېمور د لښکرو اصلي هسته جغتايي ترکانو تشکيلوله. د ده په لښکرو کې ځينې ښځې هم وې تيمور په (۸۰۷ق/ ۱٤۰٤م) کال کې د (۷۱) کلونو په عمر مړ شو.

## د تېمور ځايناستي

د مړينې په وخت کې يې ۳٦ زامن او لمسيان لرل. د دې لپاره چې د ده نه وروسته يې د اولادونو ترمنځ په واکمنۍ جګړې پېښې نه شي. په ژوند يې فتح کړي هېوادونه د دوی ترمنځ ووېشل. سره له دې هم، د تيمور له مړينې څخه وروسته د ده د دوو زامنو او لمسيو ترمنځ اختلاف رامنځته شو. او دواړو زامنو يې ورو ورو د خپلو وربرونو له خوا نيول شوې سيمې ترلاسه کړې. دوی دوه نسبتاً پراخه دولتونه رامنځته کړل. يو يې د ميران شاه او د ده د زامنو دولت په عربي عراق، د ايران په لويديځ ګرجستان، ارمنستان او الجزاير کې او دويم دولت د شاهرخ په

خراسان، افغانستان او ماوراءالنهر کې رامنځته کړ چې مرکز يې د هرات ښارو.

که له يوه پلوه د ميران شاه دولت، د نوموړي د لېونتوب، د ده د زامنو ترمنځ د اختلاف او د قراقويونلو ترکمنانو او همدارنګه د ايران د آل جلاير د واک نيولو په دليل له منځه لاړ خو له بله پلوه د شاهرخ دولت د ده او د نوموړی د درباريانو کفايت او پوهې له برکته دوام وکړ.د ده دوره د افغانستان په تاريخ کې چې مرکز يې هرات و، روښانه دوره بلل کېږي.

نوموړي (٤٣) کاله واکمني وکړه. د ده په دوره کې هرات نه يوازې د لوی کتابتون چې د شاهرخ په امر جوړ شوی و، لرونکی شو. بلکې د پوهانو او عالمانو د غونډېدو مرکز وګرځېد. د ده له مېرمنو څخه يوه ګوهرشاد آغا(په ترکي ژبه کې آغا د ملکې نوم دی) نومېده. چې د ښوکارونو په کولو او د خير د آثارو په رامنځته کولو مشهوره وه.

وروسته له شاهرخ څخه د ده زوی الغ بيګ واکمنۍ ته ورسېد. دی هم د پلار په څېر علم دوست او پوه سړی و. خو په (٨٥٢ق/ ١٤٤٨م)کا ل کې د خپل زوی له خوا ووژل شو. له دې وروسته د شهزاده ګانو ترمنځ اختلاف زيات شو. له څه مودې وروسته د سلطان حسين بايقرا په نامه يو بل تيموري امير په هرات کې واکمنۍ ته ورسېد. نوموړي، امير علي شېر نوايي چې د خپل وخت له پوهانو او اديبانو څخه ګڼل کېده، وزير وټاکه. د ده د واکمنۍ دوره (٣٣) کاله اوږده شوه. او د ده په وخت کې هرات د آبادۍ او د بډبې اوج ته ورسېد.

د سلطان حسين بايقـرا له مړينې سره ســم د تيمـور د ځـايناستو زوال هـم پيل شو او د دوی د واکمنۍ سيمه د شېباني ازبکانو او د ايران د صفويانو له خوا تر يرغل لاندې راغله او په همدې توګه دوی د تاريخ يوه برخه شول. تيموريانو (١١٣) کاله واکمني وکړه او د دوی له ډلې څخه شپږو امېرانو په افغانستان واکمني تر سره کړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې، له نقشې څخه په ګټه اخیستنې سره د تېموریانو د راولاړېدو ځای او د امپراتورۍ حدودد او پولې څرګند کړې.



## پوښتنې

۱- د تیمور د ګورکاني لقب لامل څه و؟

۲- افغانستان ته د تیمور د راتلو په وخت کې په هرات باندې چا حکومت کاوه او همدارنګه د ده پرخلیک څنګه شو؟

۳- د هرات د دوو مشهورو تیموري پاچاهانو نومونه واخلئ.

٤- د هرات آبادي او دبدبه د کوم تېموري واکمن په دوره کې رامنځته شوه او ولې؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له تاریخي کتابونو او سرچینو څخه په ګټې اخیستنې سره، د تېموریانو په دورې کې د هرات د فرهنګ او تمدن په هکله یوه مقاله ولیکي او په راتلونکې درسي ساعت کې دې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي. همدارنګه ترټولو غوره مقاله دې د ښوونځي په تابلو کې ځوړنده کړي.

# د مغولو او تېموريانو په دوره کې اقتصاد او فرهنګ

زموږ په هېواد باندې د ماوراءالنهر د ډاروونکو يرغلونو پايلې او اغېزې په اقتصادي او فرهنګي برخو کې راڅرګندې شوې. سر بېره پر دې چې مدرسې، ښوونځي، کتابتونونه او علمي مرکزونه يې ړنګ کړل، ورسره يې زموږ د سيمې زيات شمېر پوهان او عالمان يا يې ووژل او يا يې هم ليرې او نژدې هېوادونو ته تښتې ته اړ کړل. په واقعيت کې يو دربدلی حالت يا يو ډول په شاتګ رامنځته شو. په دې لوست کې دغه وضعيت ترڅېړنې لاندې نيول کېږي.

د مغولو د يرغلونو تر ټولو مهمې پايلې، سربېره پر دې چې په سلګونو زره انسانان ووژل شول، ښارونه ويجاړ او همدارنګه کاريزونه او کرنيزې ځمکې له منځه لاړې مغولانو د نيول شوو سيمو هنرمندان او صنعتګران بندي کول او مغولستان ته به يې لېږل او دوی به يې استثمارول. يوه ډله به چې په کلو او ښارونو کې د مغولو له تېغه خلاصه شوه، نو د خان يا دخان اړوند کسانو له خوا به ترې اقتصادي ګټه پورته کېده. بېلابېل ماليات په خلکو لګول کېدل.

ړنګونو او اقتصادي ويجاړتيا په فرهنګي وضعې هم اغېزه وکړه او فرهنګي زيانونه په هغه کچه زيات وو چې د مغولو له يرغلونو څخه د مخه زموږ په هېواد کې زياتره کتابونه او آثار چې پيدا کېدل له منځه لاړل. مدرسې، ښوونځی، کتابتونونه، جوماتونه او ديني ودانۍ چې په عين وخت کې به د پوهانو کتابونه او آثار هم پکې ساتل کېدل، له منځه لاړل.

پوهان او عالمان ووژل شول يا د مغولو له خوا اړ شول چې مغولستان ته کډه وکړي. او يا پخپله هغو ځايونو ته لاړل چې ګومان يې کاوه د مغولو لاسونه هلته نه رسېږي، لکه: مصر، شامات او هندوستان.

په همدې دليل په ځانګړې توګه د عقلي او فکري پوهنو په برخه کې يو وحشتناک سقوط رامنځته شو. او نور د ابن سينا په شان روښانه څېرې رامنځته نشوې.

له بله پلوه فقر، بېوزلۍ، تېريو او غمونو د خلکو انګېزه د ګټورو پوهنو په وړاندې راټيټه کړه او د علومو زياتره اړخونو او ديني ليوالتيا ته پاملرنه و نه شوه چې دې کاربه له دنيا څخه تيښتې، صبر، قناعت او د ژوند سختۍ قبلولو لور ته توصيه کوله لکه تصوف او نورې پرېښودنه چې په

دې وخت کې یې زیات مینه وال پیدا شول او هغو کسانو ته به چې نړۍ ښه ونه برېښېده، نو به یې پناه وروړله. که څه هم د یوشمېر صوفیانو کړنه او د فعالیتونو پایلې د هغه وخت د مغولي حاکمانو په ګټه وې خو په عین وخت کې د طریقت پیروان او داسي صوفیان هم اوسېدل چې خلك به یې د پردیو په وړاندې پاڅون ته را بلل.

په هر حال، له ټولو زیانونو سره سره چې د فرهنګ په برخه کې رامنځته شول. زموږ د هېواد ځینې پوهان او ادیبان د مغولو له منګولو څخه خلاص شول او په لیرې سیمو کې یې خپل آثار وپنځول، د دې دورې یو له مهمو شخصیتونو څخه مولانا جلال الدین محمد بلخي و چې پلار یې بهاولد نومېده. نوموړی (بهاولد) په ماوراءالنهر او خراسان کې ډېر مریدان لرل. او د مغولو یرغل په سبب یې سیمه پرېښوده. د کډوالی په وخت کې درې سوه او ښان د بهاءالدین او د ده د کورنۍ په قیمتي کتابونو او د کور په سامان بار وو.

زموږ د هېواد تکړه مورخ قاضي منهاج الدین چې په منهاج السراج جوزجاني مشهور و، په دې وخت کې اوسېده. نوموړي هند ته د ناصرالدین دربار ته پناه یوړه او خپل کتاب (طبقات ناصري) یې هلته ولیکه. د جهانګشا کتاب لیکونکی عطا الملك جویني، امیر حسین غوري، سیفي هېروي، ربیعي فوشنجي، بابا هوتك، د ده زوی ملکیار هوتك او اکبر زمینداوري په همدې دوره کې اوسېدل.

## د تېموریانو په دورې کې اقتصاد او فرهنګ

د تېمور اقدامات لکه د نورو سیمو لاندې کولو، د ښارونو او ودانیو ورانول، د اوسېدونکو وژل او لوټ کول او همدارنګه ماوراءالنهر ته د پوهانو، کسبګرو، صنعتګرو او هنرمندانو لېږل د چنګېزخان کړنلارې ته ورته وو. له دې امله ویلی شو چې د نوموړي دوره د مرکزي آسیا د پوونده (صحراګشتان) تسلط د تورې دورې دوام وګڼو. خو د تیمور په خلاف د ده اولادونو فرهنګي، هنري او معماري چاروته ډېره پاملرنه کوله. د تېمور د زوی شاهرخ میرزا او د نوموړې د ښځې ګوهرشاد بیګم آغا په ملاتړ ډېر روښانه او ارزښتناك آثار رامنځته شول. او د شاهرخ

زوی الغ بېگ په ملاتړ په سمرقند کې د الغ بېګي رصدخانې په نامه يوه لويه نجومي رصدخانه جوړه شوه چې ډېر پوهان پکې بسيا وو.

د شاهرخ بل زوی بايسنقر هم د کتاب له ملګرو څخه ګڼل کېده. نوموړي د لويې کتابخانې بنسټ کېښود. بايسنقر هم نژدې څلوېښت تنه انځورګران او خطاطان د هرات په شاهي کتابتون کې راغونډ کړل. دوی زيات آثار انځور کړل لکه د فردوسي شاهنامه، ليلی او مجنون، د سعدي بوستان او ګلستان، ده د ټولو هنري آثارو يونوی سبک رامنځته کړ چې د (هرات مکتب) نوم يې ځانته غوره کړ. د هرات په ښوونځي کې د انسانانو کوچني انځورونه انځور شوي او همدارنګه په ساده کرښو او بې ابزارو((لومړنۍ ابزار)) ميناتوري يې رامنځته کړې.

په هرات کې په ځانګړې توګه د سلطان حسين بايقرا (۹۱۱- ۸۲٦ق/ ۱۵۰٦-۱٤۷۰ م) کلونو په زمانه کې د تمدن او فرهنګ د غوړيدنې او پراختيا د اوج دوره وه. په دې دورې کې پاچا او د ده عالم وزير (علي شېرنوايي) له پوهانو، هنرمندانو، شاعرانو او اديبانو څخه ملاتړ کاوه چې په پايله کې مهم علمي او فرهنګي يون رامنځته شو. په ځانګړې توګه د نقاشی ستر استاد کما ل الدين بهزاد چې ډېر نفيس آثار يې وړاندې کړل. د هرات د هنري مکتب نوم يې ډېر لوړ کړ. دغه هنرمند د هرات ښوونځي ځانګړې لاره د کمال کچې ته ورسوله.

په دې دورې کې د هرات د ارګ له بيارغونې پرته نور هم ډېر مهم آثار رامنځته شول لکه په بلخ ولايت کې حضرت علي رضي الله عنه د منسوب زيارت جوړونه، په مشهد کې د ګوهر شاد بيګم آغا د جامع جومات رغونه، په هرات کې د ګوهرشاد او سلطان حسين بايقرا د قبرونو رغونه سره له شپږو ښکلاييزو منارونو، په ګازرګاه کې د خواجه عبدالله انصاري د قبر ښکلي کول، په هرات کې نور ډېر جوماتونه او زيارتونه همدارنګه د ايران پولې ته نژدې د خارګرد جومات يادولای شو.

د دې دورې مهم علمي او فرهنګي شخصيتونه عبارت وو له: امير علي شېر نوايي، ملا حسين واعظ کاشفي، سلطان حسين بايقرا، شېخ عبدالرحمن جامي، مير سيد علي خطاط، مولانا حسين علي هروي، ملا محمد ابراهيم غبار او د فاضلو او شاعرو ښځو له ډلې څخه د لاندې





ښځو نومونه اخیستي شو:

سلطان رضیه د التمش لور چې شعر به یې هم وایه، مهر النسا چې تخلص یې مهري و او په هرات کې اوسېده. د امیر علي جلایر لور، آفاق جلایر چې د حسین بایقرا په زمانه کې اوسېد له او (ماه) چې هم شاعره او هم ستوري پېژندونکې وه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، یوه ډله دې د مغولو د دورې په فرهنګي وضعې او دویمه ډله دې د تېموریانو د دورې په فرهنګي حالت په لنډه توګه خبرې وکړي.



## پوښتنې

١- د پوهانو، هنرمندانو او صنعتګرانو په وړاندې د مغولو او تیموریانو په چلند خبرې وکړئ؟

٢- مولانا جلال الدین محمد بلخي چېرته اوسېده او ولې یې کډه وکړه؟

٣- د ګوهرشاد بیګم آغا په امر د دوو مشهورو جوړو شوو ودانیو نومونه واخلئ.

٤- امیر علي شېر نوایي څوک، او په څه حال کې یې ژوند کاوه؟

٥- په بلخ کې حضرت علي رضی‌الله‌عنه ته منسوب زیارت د کوم تیموري پاچا په واسطه جوړ شو؟



## له ټولګي څخه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د (هرات هنري ښوونځي) په هکله یوه مقاله ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې ټولګي ته وړاندې کړي، همدارنګه تر ټولو غوره مقاله دې د ښوونځي د اعلانونو په لوحه باندې ځوړنده شي.

# دریم څپرکی

## افغانستان د کندهار له پاڅون څخه مخکې

په دې څپرکي کې به د کندهار د پاڅون په و ړاندې حالات په تېره بیا له درو ګاونډیو دولتونو(شیبانیانو، صفویانو او بابریانو) سره زموږ د هېواد د اړیکو څرنګوالی، تر مطالعې لاندې ونیول شي.
دغه راز زده‌کوونکي به د هوتکیانو په مشرۍ په کندهار کې د لومړني افغان دولت له جوړېدو سره آشنا شي.



په کندهار کې د حاجی میرویس نیکه آرامګاه

# د څپرکي موخې

۱. د کندهار د خپلواکۍ له پاخون څخه مخکې د افغانستان له عمومي وضعې سره د زده‌کوونکو بلدول.

۲. له ګاونډیو واکمنو لړیو لکه شیبانیانو، بابریانو او صفویانو سره د افغانستان او د دوی د اړیکو په څرنګوالي د زده‌کوونکو بلدول.

۳. په افغانستان او ایران کې د هوتکي دولت له مهمو سیاستونو او اقداماتو سره د زده‌کوونکو بلدول.

٤. په یاده شوې دورې کې د افغانستان له عمومي اقتصادي او فرهنګي وضعې سره د زده‌کوونکو بلدول.

٥.زده‌کوونکي دې د تاریخي اطلسونو او نقشو څخه کار واخیستلای شئ.

٦. د انحطاط او تجزیې دورې په ترڅ کې د مهمو تاریخي او فرهنګي شخصیتونو او پوهانو سره د زده‌کوونکو بلدول.

# د کندهار له پاڅونه مخکې د افغانستان وضعه

د هرات د تیموري لړۍ له منځه تللو سره سم، زموږ په هېواد کې یوه مرحله (تقریباً دوه نیمي پېړۍ) رامنځته شوې چې د افغانستان سیاسي مرکزیت او یو قلمرو له منځه لاړ چې زموږ ګاونډیو هېوادونو او قومونو زموږ د هېواد ځینې برخې لاندې کړې.
د دې ډلې مهم ځواکونه عبارت وو له: ازبکي شېبانیانو، د ایران صفویان او د هند مغولانو څخه چې له بخارا، سمرقند، اصفهان او ډهلي څخه یې زموږ د هېواد سیمې او ولایتونه اداره کول. د وضعې څېړنه او دهوتکیانو په واسطه د افغانستان د بیارغونې څرنګوالی د دې او د ځونورو راتلونکو لوستونو موضوع ده چې په ګډه به یې لولو.

## په افغانستان کې شیبانیان

ازبکان د مغولو او تاتاریانو له اولادې څخه شمېرل کېږي. ازبکان خپل نوم له (ازبک خان) (٦٨١-٧٤٣ق/١٢٨٢-١٣٤٢م)کلونو څخه اخلي. نوموړي د مغولو زرین پوځ چې د (والګا) رود ترڅنګ مېشت و، مسلمان کړ. نوموړی پوځ د ترکي قومونو څخه جوړ شوی و، خو رهبران یې مغولي نژاده وو.
په مرکزي آسیا کې د ازبکانو ځواک د چنګېزخان د زوی جوجي د یوه لمسي ابوالخیر له خوا رامنځته شو او نوموړي د قبچاق د دښتو یوه زیاته برخه ونیوله خو د ازبکو ترټولو مشهور پاچا محمد خان شیباني (شیبک خان) نومېده، نوموړی د (ابو الخیرخان) زوی و.
شیبک خان د شپاړسمې مېلادې پېړۍ په لومړیو کې د تیموري لړۍ وروستی واکمن په سمرقند کې له پښو وغورځاوه او په دې توګه یې په ماوراءالنهر کې د ازبکانو د واکمنۍ بنسټ کېښود. که څه هم د شیبانیانو واکمني موقتاً د بابر له غندنې سره مخ شوه خو په (٩١١ق/١٥٠٥ م) کال شیبانیان وتوانېدل چې بابر او ملاتړي یې له مرکزي آسیا څخه وشړي.
شیبانیانو په ځانګړې توګه د سلطان حسین میرزا له مړینې وروسته او د نوموړي د اولادونو ترمنځ د اختلاف په سبب د افغانستان لورته پاملرنه وکړه او د تیموریانو د واکمنۍ مرکز، هرات د شیبک خان ازبک لاسته ورغی. پرته له هرات څخه، کندهار هم د شیبانیانو تر یرغل لاندې راغی او دا ښار چې تر اوسه د بابر پاچا له ورور یادګار ناصر میرزا سره و، تر استراباده پورې مخکې لاړل.
د شیبانیانو ځواک تر (٩١٦ق/١٥١٠ م) کال پورې، چې د شاه اسماعیل صفوي یرغلونه په ازبکانو جاري وو، چلېده، خو په همدې کال، په هغې خونړۍ جګړې چې مروې ته نژدې را پېښه شوه. محمد خان شیباني د خپل لسوزرو جنګیالیو سره د ایران صفوي قزلباشو له خوا ووژل شو چې په دې





ترتیب دا ځل زموږ د هېواد لویدیځې، شمالي او مرکزي برخې  د صفویانو لخوا لاندې شوې.
که څه هم په موقته توګه شیبانیانو د آمو سیند غاړې ته په شاتګ وکړ خو یرغلونه او بریدونه یې په ځانګړې توګه د افغانستان په شمال باندې ونه درېدل او دوی د افغانستان په شمال کې بدخشان تر میمنې او بادغیس پورې او همدارنګه دهېواد په لویدیځ کې یې هرات څو څو ځلې تر یرغل لاندې ونیو. په ځانګړې توګه عبیدالله خان چې د محمد سلطان خان زوی او د ابو الخیر لمسی و، د ازبکانو ځواکمن پاچا د (۳۳) کلونو واکمنۍ په ترڅ کې اووه ځله زموږ په هېواد او په ایران یرغلونه کړي چې ډېر زیات زیانونه یې را اړولي دي.
شیبانیانو تر (۱۰۰۷ق/ ۱۵۹۹م) کلونو پورې واکمني چلولې ده. د دوی پلازمېنه زیاتره وخت  سمر قند او ځینې وخت بخارا هم وه، او څه د پاسه یوه پېړۍ یې زموږ د هېواد شمالي او لویدیځ ولایتونه او سیمې یې تر بریدونو او یرغلونو لاندې نیولې وې.
د ازبکو استراخانیان هم په مرکزي آسیا کې د شیبانیانو پر ځای پر تخت کېناست. د افغانستان په وړاندې یې هماغه د شیبانیانو سیاست پر مخ بیوه او ځینې وخت به یې زموږ د هېواد شمالي ولایتونو لکه تخار او بلخ او ځینې وخت به یې هرات ته لاس غزولو. د استراخانیانو حکومت تر (۱۱۶۷-۱۷۵٤م)کال پورې دوام وکړ.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي له نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره د والګا رود په شاوخوا کې د مغولي زرین پوځ د میشت کېدو موقعیت او د افغانستان شمال ته د شیبانیانو د لاس رسي لارې په ګوته کړي.



## پوښتنې

۱- شیبانیان د نژادي پلوه په کومې ډلې پورې تړل کېږي؟
۲- د شیبانیانو د ځواک اصلي مرکز چېرې واقع و او ولې یې افغانستان ته پاملرنه وکړه؟
۳- شیبک خان (محمد خان شیباني) د چا پواسطه او چېرته ووژل شو؟
٤- د هغو ولایتونو نومونه واخلئ چې زیاتره وخت به د شیبانیانو او استراخانیانو د برید او یرغلونو لاندې راتلل.



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له علمي سرچینو څخه په ګټې اخیستنې سره د شیبک خان د کړنلارې په هکله یوه لنډه مقاله ولیکي او په راتلونکې درسی ساعت کې دې خپلو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# بابريان او افغانستان

يوه بله سلسله چې د تجزيې او ګډ وډۍ په وخت کې يې زموږ د هېواد په ځينو برخو واکمني چلوله، بابريان وو. دوی هم د افغانستان د ډېرو ګاونډيو ځواکونو سره په سيالۍ کې زموږ د هېواد د پريشانۍ، په شاتګ او د ټولنيزو، سياسي او اقتصادي خنډونو لامل وګرځېدل.
په دې لوست کې به د افغانستان د تاريخ په دې برخه کې د بابريانو مهم اقدامات او خوځښتونه ولولئ.

ظهير الدين محمد بابر (د ببر په معنا) د تيمور له لمسيانو څخه ګڼل کېده. پلار يې په ازبکستان کې د انديجان حاکم و. نوموړي د ازبک شيباني ځواک د خپرېدو په لار کې په (٩٠٦ق/١٥٠١ م) کال له مرکزي آسيا څخه افغانستان ته وتښتېد. او د ببرته راستنېدو په لومړيو ورځو کې د تخارستان سيمه ييز حکمران خسرو شاه ورته ښه راغلاست ووايه.
خسرو شاه په دې وخت کې زموږ د هېواد په شمال کې تر بدخشان پورې سيمې په واک کې درلودې. بابر وروسته له دې درې زره هغه لښکرې ورسره ملګرې کړې چې د خسرو شاه له ځواک څخه بېلې شوې وې؛ نو د کابل په لور وخوځېد. کابل په دې وخت کې د هرات د تيموريانو له خوا د يوه حاکم په واسطه اداره کېده. بابر په (٩١٠ق/١٥٠٤ م)کال کې کابل پرته له جګړې او مقاومته ونيوه. دغه وخت چې د تيموريانو د واکمنۍ لړۍ د کمزورۍ او سقوط سره مخامخ وه. بابر بېلابېلو برخو ته پوځونه ولېږل او په ټوليزه توګه، پرته د افغانستان د لويديځو او شمال لويديځو ولايتونو څخه پرته چې د ايران د صفويانو ترواک لاندې وو، نور وتوانېد چې د افغانستان زياتره سيمې لاندې کړي.
بابر وروسته له دې چې زموږ د هېواد په مهمو برخو يې واک ټينګ کړ. د هند په لور يې پوځونه وخوځول چې په پايله کې يې د کابل، بدخشان او کندهار د ځواکونو په واسطه يې ډهلي ونيو چې په دې ترتيب په هند کې د يوې نوې لړۍ بنسټ کېښودل شو چې ترڅو پيړيو يې دوام وکړ.
بابر په (٩٣٥ق/ ١٥٢٩م)کال کې مړ شو او د خپل وصيت له مخې په کابل کې خاوروته وسپارل شو. وروسته له ده څخه د نوموړي تر ټولو مشر زوی ناصر الدين محمد همايون چې په کابل کې زيږېدلی و، رامنځته شو. نوموړی د خپلو ورونو او په هند کې د افغانانو له مخالفت سره مخامخ شو.
همايون د افغان شېر شاه سوري د پوځونو له خوا د قنوج په سيمه کې ماتې وخوړه او څرنګه چې ورونو يې هم له ده سره مرسته ونه کړه، نو په ايران کې يې د صفوي طهماسب دربار ته پناه يوړه. په دې وخت کې د افغانستان زياته برخه له بدخشان نه تر کندهار پورې د بابر د بل زوی کامران ميرزا په لاس کې وه. خو همايون داخل په (٩٥١ق/١٥٤٤ م) کـال کې افغانستان ته راوګرځيد او د (١٣) زرو صفوي قوتونو په مرسته يې د افغانستان زياتې سيمې او ولايتونه لاسته راوړل. داخل يې له لسو کلونو څخه وروسته خپل هغه ورونه له مخې ليرې کړل چې له نوموړي سره مخالف وو.
همايون په دې موده کې خپل ورونه هر يو ناصر ميرزا، ميرزا هندال او ميرزا عسکري ووژل او کامران





میرزا یې ړوند کړه وروسته هند ته یې پام شو او د سلطان ابراهیم لودی له ماتې وروسته؛ دویم ځل د دهلي پر ګدۍ کېناست. د همایون له مړینې وروسته د هغه زوی جلال الدین اکبر د ډهلي پر تخت کېناست. او نوموړي د کابل او غزني اداره خپل ورور محمد حکیم ته وسپارله خو دی په خپله د افغانانو سره په دوامداره شخړو کې ښکېل و، په ځانګړې توګه د خیبر، سند او ژوب په سیمو کې د دوی پاڅونونه یې شنډ کړل.

د جلال الدین اکبر له مړینې وروسته، د ده زوی سلیم شاه د جهانګیر په نامه د هندوستان واکمن شو.

د همدې واکمن په وخت کې چې صفوي شاه عباس په کندهار یرغل وکړ او نوموړی ښار یې ونیوه.

د صفویانو او ګورکانیانو د واکمنۍ په موده کې دکندهار برخلیک د یادو شوو دوو لړیو ترمنځ د اختلاف او شخړو مهم ټکی و او ډېر ځله ګورکاني هند او صفوي ایران د دې په سر سره نښتي دي.

د جهانګیر ځایناستو، شاه جهان او اورنګزیب هم دخپلو واکمنیو د پراختیا په سبب د افغانستان په هکله ډېرې هلې ځلې کړې دي او په ځانګړې توګه د کابل، بلخ او بدخشان برخلیک د دوی او د سیمه ییزو ځواکونو ترمنځ د اختلاف بل لامل بلل کېږي. لکه د بلخ او د هېواد د شمالي سیمو د لاندې کولو پر سر د بابر او ازبکو استراخانیانو ترمنځ جګړې او همدارنګه د ختکو او یوسفزیو سره ټکرونه او نښتې چې په ځانګړې توګه د اورنګزیب په (۵۰) کلنه دوره کې رامنځته شول او د پراخه زیانونو سبب وګرځېدل.

دغو پېښو څرګندوله چې د افغانستان د تجزیې موده را رسېدلې، د پردیو لاسوهنو او د ځینو سیمه ییزو مخورو له خوا د بهرنیو ځواکونو ملاتړ د دې لامل وګرځېد چې ګډوډي او انحطاط رامنځته شي چې د ډېرې مودې لپاره دا وضعه ناسمه پاتې شوه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې هغه دلایل ووایي چې له افغانستان څخه یې د بابر پاملرنه هندوستان ته واړوله.



### پوښتنې

۱- بابر شاه د کومو پوځونو په مرسته کابل او ورپسې هندوستان ونیوه؟

۲- همایون ولې صفوي دربار ته پناه یوړه؟

۳- د هغو اختلافي سیمونومونه واخلئ چې د بابریانو او صفویانو او همدارنګه د بابریانو او استراخانیانو تر منځ شخړې په کې رامنځته کېدې؟

۴- ولې بابر پاچا د افغانستان لویدیځ ولایاتو ته لښکر کښي ونه کړه؟



### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د بابر پاچا د (بابر نامې) په نامه د خاطراتو ټولګې په هکله یو لنډ مطلب ولیکي.

# افغانستان او صفويان

د ایران صفویانو زموږ د سیمې نیولو ته هم هغه وخت سترګې پټې کړې وې چې زموږ د تاریخ هغه دوره د انحطاط او تجزیې په نوم یادیده. زموږ په هېواد باندې د یرغل د هڅو په درشل کې او یا د دوو هم مهاله کورنیو (ازبکانو او ګورګانیانو) سره د سیالۍ په پایله کې زموږ هېواد ته درانه زیانونه واوښتل. که څه هم له صفویانو سره د دوی ترلاس لاندې نورو سیمو کې هم مخالفتونه موجود وو، خو په ځانګړې توګه افغانان له هغو لومړیو ډلو څخه شمېرل کېږي چې له صفویانو څخه یې خپله خپلواکي ترلاسه کړه، دغه موضوعګانې به په دې لوست کې ولولو.

صفویان په اصل کې د شیخ صفي الدین اردبیلي له نسله دي. شیخ صفي الدین اردبیلي په اتمه هجري پېړۍ کې اوسېده. چې په ایران او کوچنۍ آسیا یا عثماني خلافت کې یې ډېر مریدان او پیروان وو، خو په ایران کې د صفوي لړۍ د حکومت بنسټ ایښودونکي شاه اسماعیل ګڼل کېږي. نوموړي د شیخ صفي الدین اردبیلي له لمسیانو او په عین وخت کې د خپل عصر د صفویه طریقت پیرو او مرشد و. شاه اسماعیل په خپلو مخالفانو باندې له برلاسۍ وروسته په (۹۰۷ق/۱۵۰۱ م) کال کې د ایران د تبریز په ښار کې د تاج ایښودلو مراسم تر سره کړل. نوموړي د خپلو تکړه مریدانو او ترک تبره ملا تړکوونکو (قزلباشو) په واسطه د ایران په دولت کې د حکوت د بنسټ ټینګولو نه وروسته د افغانستان لوري ته پاملرنه وکړه.



په اصفهان کې د شیخ لطف الله جومات

افغانستان په دې وخت کې د ازبکي شیباني څواکونو او بابریانو له خوا اداره کېده، سره له دې چې د شاه اسماعیل او بابر پاچا اړیکې ډېرې ښې وې او هر وخت به یې د لیکونو په واسطه اړیکې ټینګولې خو د شاه اسماعیل او شیبک خان اړیکې ډېرې خرابې وې. چې په (۹۱۶ق/۱۵۱۰ م) کال کې د صفویانو او ازبکانو ترمنځ په خونړۍ جګړه کې چې مروې ته نژدې پېښه شوه، ازبکانو سخته ماتې وخوړه، د ازبکانو پاچا شیبک خان ووژل شو اود (۳۰) زرو په شاوخوا کې څواکونه یې یا مړه او یا بندیان شول. له دې وروسته له هرات څخه تر بلخ او هزاره جاتو پورې سیمې د صفویانو په لاس ورغلې او د امو سیند د ازبکانو او صفویانو ترمنځ د پولې په توګه وټاکل شو.

که څه هم دا وضعیت په خپل حال پاتې نشو زموږ د هېواد لویدیځې او شمالي سیمې ډېر ځله د دواړو لورې د شخړو او یرغلونو په ډګر بدل شول خو د یادو شوو سیمو خلک له دواړو لورو څخه ناراضه وو. شاه اسماعیل صفوي په (۹۳۰ق/۱۵۲٤ م) کال کې مړ شو او له ده وروسته د نوموړي زوی طهماسب د ایران پاچاهي ته ورسېد. د دې پاچا په وخت کې همایون ګورګاني چې د خپلو وروڼو او افغانانو د مخالفت سره مخ شوی و، ایران ته پناه یوړه. نوموړی له څه مودې وروسته د صفوي دولت (۱۳) زرو جنګي څواکونو (قزلباشو) سره افغانستان ته راوګرځېد، کندهار او کابل یې ونیول او د کندهار سلطنتي خزانې یې د ایران دربار ته ولېږلې، ایراني سرتېري له دې وروسته په کندهار کې مېشت شول.





د طهماسب د مړینې له کبله صفویان له داخلي بحران سره مخ شول او له دې وروسته زموږ هېواد هم د صفویانو د رقیبانو (ازبکانو او ګورکانیانو) د یرغلونو سره مخ شول. خو د عباس میرزا د بیا را څرګندېدو سره سم. چې په لومړي سرکې یې هرات خپله پلازمېنه وټاکله او وروسته یې ټول اېران لاندې کړ، کندهار یې هم دخپلې ولکې لاندې راوست. د کندهار برخلیک هر وخت د صفویانو او ګورکانیانو دوو لړیو د اختلاف سبب و.

د دې څواکمن پاچا له مړینې سره سم په (۱۰۳۸ق/۱۶۲۹ م) کال کې د دې کورنی له منځه تلل هم پیل شو، ځکه د نومړي نه وروسته بې له ځنډه، شاه صفي ډګرته راغی او کابو د صفوي کورنۍ ټول غړي یې ووژل. د ده په وخت کې په (۱۰٤۷ق/۱۶۳۰م) کا ل عثمانیانو په لوېدیځ کې بغداد او ګورکانیانو په ختیځ کې کندهار ونیوه په دې توګه دویم شاه عباس یو ځل بیا له ګور کانیانو څخه د کندهار د نیولو هڅه وکړه تر څو یې خپلې ولکې لاندې راولي. که هر څو د هندوستان د پاچا شاه جهان له خوا د کندهار د بیانیولو هڅه وشوه او خپل زوی اورنګزیب یې د کندهار د نیولو لپاره ولېږه خو هڅو یې نتیجه ورنه کړه او ګورکانیان د دې ښار د او یا ورڅو محاصرې وروسته، په شاتګ ته اړ شول. له دې وروسته، سره له دې چې په ښکاره توګه، کندهار د صفویانو له واک لاندې و خو د صفوي مامورینو د بد چلند له امله ورځ په ورځ ترې خلک ناراضه کېدل او ځینې وخت به د خلکو د پاخونونو لامل ګرځېدل. په پایله کې د دې پاخونونو له ډلې څخه د یوه پاخون په ترڅ کې چې حاجي میرویس خان هوتک له خوا تر سره شو. افغانان وتوانېدل. چې د صفوي حکومت له ظلمه ځان خلاص او خپله خپلواکي ترلاسه کړي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په ټولګي کې له نقشې څخه په ګټې اخیستنې سره، هغه سیمې په ښه کړي چې د ازبکانو یا صفویانو د برید او یرغلونو ډګرو.



## پوښتنې

۱- د صفوي لړۍ بنسټ ایښودونکی څوك و او نومړي ولې د افغانستان په لور لښکر وخوځاوه؟

۲- د صفویانو سره په شخړو کې هغه ښکېلې ډلې څه نومېدې، چې د افغانستان په ګاونډ کې یې څواکونه میشت وو؟

۳- همایون ګورکاني د کوم ایراني پاچا په مرسته د افغانستان په لور لښکر کښې وکړه او کوم ولایتونه یې لاسته راوړل؟

٤- د کندهار برخلیك ولې د صفویانو او ګورکانیانو د اختلاف سبب وګرځېد؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له علمي سرچېنو څخه په ګټې اخیستنې، د ګورکانیانو او صفویانو په بهرني سیاست کې د کندهار د اهمیت په هکله یوه مقاله ولیکي.

# د حاجي میرویس نیکه ترمشرۍ لاندې د کندهار پاڅون

په هېواد کې د یوې اوږدې دورې ګډوډیو نه وروسته د هوتکیانو تر مشرۍ لاندې په ګرګین د ظلم څخه د خلاصون په موخه د کندهار د خلکو پاڅون یو مهم ګام ګڼلی شو. د دغه ګام د پردیو د غلامۍ کړۍ ماتې کړې او د سیمه ییزه خپلواکه حکومت بنسټ یې کېښود.
د نوموړي پاڅون د بریالیتوب څرنګوالی او په کندهار کې د هوتکي دولت جوړښت د دې لوست موضوع ده چې تاسې به یې ولولئ.

څرنګه چې په دوو تېرو لوستونو کې وولوستل، د هرات د تیموریانو دولت له ړنګېدو وروسته د دوه نیمو پېړیو په ترځ کې د افغانستان سیاسي او ټولنیز یووالی له منځه لاړ. او پرته له هغو خانانو او د سیمو مخورو څخه چې د خپلې واکمنۍ لمنه یې غوړولې وه، په ځانګړې توګه بابریانو او صفویانو د خپلو تېریو او ظلمونو په واسطه زموږ خلک تر پزې رسولي وو. هغه ظلمونه او ستمونه چې د ګرګین خان په نامه د یوه ګرجي الاصله ایراني له خوا په کندهار او ددې په شاو خوا سیمو کې کېدل زیاتره خلک یې د پردیو پر ضد پاڅون ته هڅولي وو. په پایله کې دغه پاڅون د( ۱۱۲۱ ق/ ۱۷۰۹م )کال په پسرلي کې رامنځته شو او میرویس خان چې په ((حاجي میرویس نیکه)) مشهور و د دې پاڅون مشري کوله.

## د کندهار پاڅون د رامنځته کېدو لاملونه

د ایران د صفوي لړۍ وروستی پاچا شاه سلطان حسین نومیده. نوموړي په اصفهان کې دواکمنۍ په لومړیو کلونو کې د همدې هېواد په ختیځ کې د مېشتو قومونو لکه براهوي، بلوڅانو، نارویي، ریګي، رخشاني او افغانانو د پاڅونونو د ټکولو په لټه کې شو. د دې ډول حرکتونو لمنه د کرمان، یزد او د نائین تر څنډو رسېدلې وه. نژدې په همدې ورځو کې ازبکانو په خراسان کې او کردانو د ایران په لویدیځ کې د صفوي حکومت په ضد فعالیتونه پیل کړي وو. که څه هم د شاه سلطان حسین د پاچاهی په پیل کې ګرګین خان په ګرجستان کې بغاوت کړی و او په همدې ورځو کې په اصفهان کې اوسېده خو سره له دې ټولو ګرګین خان د ایران د دربار له خوا د یادو شوو پاڅونونو د ټکولو لپاره مامور شو. په دې کار کې د ګرګین خان بریالیتوب د دې لامل شو چې د صفویانو له خوا د کندهار عمومي حکمران وټاکل شي. څکه د (۱۱۱۵ ق/۱۷۰۳م) کا ل په وروستیو کې بلوڅان د میرسمندر په مشرۍ کندهار ښارته ننوتي وو او صفوي مامورینو ته یې ستونزې زېږولې وې. ګرګین د کندهار ښار ته له ننوتو وروسته د هغه ځای اداره په لاس کې ونیوله. او څرنګه چې نوموړی غوسه ناک، سخت ګیر او خونړی سړی و، نو ځکه یې د کندهار په اوسېدونکو هر ډول زور زیاتي پیل کړ. نوموړي د قومونو او قبیلو مشران





تر فشار لاندې راوستل او ځینې خوېې لامړه کړل. له دې قومي مشرانو څخه یو حاجي میرویس خان نومېده چې د ګرګین خان سترګې پرې ولګېدې.

## د کندهار د پاڅون مشر حاجي میرویس نیکه



حاجی میرویس نیکه

میرویس خان چې په حاجي میرنیکه مشهور و د یوو لسمې پېړۍ په وروستیو کې د نازو په نامه له یوې مور څخه وزیږیده. پلار یې شاه عالم خان د هوتکو قوم له مشرانو او مور یې د سلطان ملخي توخي لورو وه، چې دواړه د قومي مشرانو څخه ګڼل کېږي. په را وروسته وختونو کې څه وخت چې میرویس خان د جعفرخان سدوزي له لور سره واده وکړ، نو د نوموړي ټولنیز حیثیت یې نور هم لوړ کړ او څرنګه چې نوموړی یو نیک خویه، فصیح، مدبر او زړور سړی و او په څنګ کې یې د سوداګرۍ دنده هم پر مخ بېوله ، نو ځکه په ډېره اسانۍ سره یې وکولای شول چې د هغه وخت کندهار په خلکو کې ښه ځای ولري. د همدې خصوصیاتو او صفاتو په لرلو سره د کندهار ښار د مشر په توګه هم و ټاکل شو. او په دې مقام کې د خلکو او د هغه وخت کندهار د حکومت تر منځ د واسطې په توګه یې د نده تر سره کوله خو په همدې حا ل کې یې هم د خلکو له ملاتړ څخه لاس وانه خیست او په هغه لیک کې چې د ده لاسلیک پرې و د ګرګین له زور زیاتي څخه په کې شکایت شوی و، او د اصفهان دربار ته ولیږل شو، دا کار د دې لامل وګرځید چې میرویس خان دا ځل د ګرګین له خوا ونیول شو او لاس نیولی اصفهان ته ولیږل شو.

### زیات وپوهیږی:

د (۱۱۱۹) هجري قمري کال د ذالقعدې میاشتې په نولسم نیټه ، کله چې زموږ ملي قاید میرویس نیکه د ملت په مرسته، ګرګین د یرغلګرو قوماندان یې په کندهار کې په قتل ورساوه او په هغه ځای کې یې د یو ملی حکومت بنسټ کېښود، په دغه موقع کې د افغانان مشرانو او کشرانو په وړاندی یو ملي افغاني جرګه کې داسې وویل((که تاسو له ما سره یو موټی شئ او زما ملا وتړئ، نو په دې صورت کې ډېر ژر دا امکان شته چې بریا به تر لاسه شي؛ تر څو د اسارت او ذلت منحوس ځنځیر له خپلې غاړې څخه لرې کړو. او په مقابل کې د خپلواکۍ افتخار او د عزت بیرق د هېواد په ګوټ ګوټ او د نړۍ د آزاده ملتونو په منځ کې پورته کړو او هر کله چې د پردیو د سلطې هغه یوغ له خپل ځان څخه لرې کړو او په لوی خدای تبارك او تعالی باندې توکل وکړو او مطمئین اوسو، څرنګه چې زموږ نیت پاك دې نو د لوی خدای ﷻ په استعانت وروستني بریالیتوبونه زموږ دي))

میرویس خان مخکې له دې هم اصفهان ته سفرونه کړي وو، او د صفوي حکومت او دربار له وضعې سره بلد و له همدې کبله نوموړی وتوانید چې نه یوازې ځان ته برائت ورکړي، بلکې د صفوي پاچا، سلطان حسین حضور ته هم ورسېد او مکې ته یې د تللو اجازه هم ترې واخیسته.
نوموړي په مکې معظمې کې له مذهبي عالمانو څخه د گرجي گرگین په وړاندې د پاځون فتوا تر لاسه کړه.
له اصفهان څخه کندهار ته د حاجي میرویس خان له راگرځېدو سره سم د اصفهان د دربار وضعه د گرگین په وړاندې بدله شوې وه ځکه داسې گنگوسې اورېدل کېده چې د روسیې امپراطور پترکبیر غواړي ارمنستان او گرجستان له خپل هېواد سره ونښلوي او داهم ویل کېدل چې گرگین له خپلو عسکرو غواړي د پترکبیر سره یوځای شي. دغه گنگوسه د دې لامل وگرځېده چې میرویس خان له ډیر واک سره کندهار ته بیرته وگرځي.
نوموړي داځل په کندهار کې په ډیرې حوصلې سره د پردیو په وړاندې د پاځون لارې برابرې کړې.
په ځانگړې توگه د( ۱۱۲۱ ق / ۱۷۰۹ م) کال په پسرلي کې هغه وخت چې گرجي لښکرې د گرگین د وراره الکساندر تر مشرۍ لاندې د کندهار ښار د ارغستان اوکاکړو د ځپلو په نیت وتلې وې نو ډیره ښه زمینه مساعده شوه، او په دې حال کې میرویس خان او نور قومي مشران د مانجې په نامه په یوه سیمه ییزه جرگه کې سره راټول شول او له میرویس خان سره یې ژبه وکړه، او همدارنگه د کندهار د اوسېدونکو په مرسته یې گرگین او د صفوي دولت ډیرې گرجي لښکرې د کندهار ښار نه د څلویښتو میلو په واټن د (ده شیخ ) کلي کې غافلگیره او بیا ووژلې.
الکساندر او پوځونه یې هم چې د کاکړو له جگړې څخه راگرځېدلي وو، په ډېرې سختۍ وتوانیدل چې له جگړې وتښتي او گرشک ته ځان ورسوي.


په کندهار کې د حاجي میرویس خان مزاز

په دې ترتیب د بایزید انصاري تر مشرۍ لاندې د روښاني پاځون، د خوشحال خان خټک تر مشرۍ لاندې د خټکو تر پاځون وروسته د کندهار پاځون د خپلواکۍ گټلو په لاره کې دریم گام گڼلی شو. چې د کندهار د خلکو په گډون تر سره شو، چې زموږ په هېواد کې یې د خپلواکه دولت بنسټ کېښود.
د صفویانو له خوا د کندهار د بیانیولو پرله پسې هڅو، څه گټه ونه کړه او میرویس خان، ملي قاید ترنامه لاندې اته کاله د

کندهار واګې په لاس کې درلود. حاجي میرویس نیکه په( ۱۱۲۷ ق/ ۱۷۱۵م) کال کې مړشو.

## میر عبدالعزیز

له میرویس نیکه وروسته د ده ورور میر عبدالعزیز خان د کندهار د حکومت مشري تر لاسه کړه خو نوموړي له دوو کالو حکومت څخه وروسته، د حاجي میرویس خان د کړنلارې خلاف له صفوي حکومت سره د پخلاینې لاره خپله کړه. د قومونو او قبیلو مشرانو د نوموړي دا کار خوښ نشو او د حاجي میرویس خان زوی میرمحمود یې د خپل کاکا وژلو ته تشویق کړ او نوموړی وروسته له دې کاره په( ۱۱۲۹ ق/ ۱۷۱۶م) کال کې د کندهار د حکومت پر تخت کیناست.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو بېلابېلو ډلوکې د تاریخ په هماغه شېبو کې د کندهار ولایت د کورني او بهرني ارزښت په هکله خبرې اترې وکړي.



### پوښتنې

۱) ګرګین څوک و او ولې د اصفهان د دربار له خوا د کندهار حکمران وټاکل شو؟

۲) ولې حاجي میرویس د رهبراو مشر په توګه د کندهار د خلکو د منلو وړ وګرځید؟

۳) د صفوي دربار په وړاندې د حاجي میرویس نیکه او میرعبدالعزیز د سیاستونو تر منځ توپیر څه و؟

٤) ولې د ایران دربار حاجي میرویس نیکه ته اجازه ورکړه چې له اصفهان نه کندهار ته بېرته وګرځي؟



### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د کندهار د پاڅون په وخت کې د هېواد د سیاسي او ټولنیزې وضعې په هکله یو مطلب ولیکي او د لوست په راتلو نکې درسی ساعت کې دې وړاندې کړي.

# په ایران کې د هوتکي دولت رامنځته کېدل

په ایران کې د هوتکي دولت رامنځته کېدل د افغانستان او ایران د تاریخ له مهمو برخو څخه شمېرل کیږي. که هر څو د دې دولت عمر ډېر لنډ و خو په همدې کم وخت کې بیاهم ډېرې مهمې پېښې رامنځته شوې. لکه له ایران څخه د ځینو سیمو د بېلولو په هکله عثماني او د روسیې نقشه، په ختیځ کې د سیمه ییزو حکومتونو جوړښت او ځینې نورې داسې پدیدې چې په دې لوست کې به ورسره بلد شو.


شاه محمود هوتکي

## شاه محمود هوتکي

په کندهار کې د حاجي میرویس خان مشر زوی شاه محمود په تخت کښېناست چې په هرات کې د ابدالیانو د واک ته رسیدو سره همزمان وو؛ ځکه چې په هرات کې افغانانو د کندهار له پاڅون څخه په الهام اخیستلو، هرات په (۱۱۲۹ هـ ق/ ۱۷۱٦ م) کال د روژې په میاشت کې ونیو. د افغانانو مشري په دې وخت کې عبدالله خان سدوزي کوله. څرنګه چې شاه محمود هڅه وکړه چې د سیستان د نیولو طرحه عملي کړي، په لومړي سرکې له ابدالیانو سره مخ شو چې هرات یې په ولکه کې و. په دې جګړې کې هوتکیانو بریالیتوب تر لاسه کړ او په جګړې کې د هرات د ابدالیانو د مشرعبدالله خان زوی اسدالله خان ووژل شو.

شاه محمود هوتک چې د ایران داخلي وضعه یې خارله، یو کال وروسته یې بیا خپل لښکر هغې خواته وخوځاوه، او دا ځل یې لښکرې له ریګستان څخه په تېرېدو سره تر کرمان پورې ورسېدې، خو د هغوی حکمران سره له پخلاینې وروسته کندهار ته راوګرځید. نوموړي په کندهار کې د خپلو لښکرو د پیاوړیتوب لپاره ځینې ګامونه اوچت کړل او په (۱۱۳۵ ق/ ۱۷۲۲ م) کال کې له (۲۵) زره لښکرو سره د هزاره او بلوڅو په ګډون د ډېرو قومونو سرتېرو سره یو ځل بیا د ایران په لور یون پیل کړ، نوموړي دا ځل له کرمانیانو سره سوله وکړه، په یزد کې د صفویانو پلازمینې اصفهان ته یې ځان ورساوه او د دواړو لورو ترمنځ د ګلناباد په سیمه کې سخته نښته وشوه، که څه هم په لومړیو کې صفویانو څه بریالیتوب تر لاسه کړ خو افغانان وتوانېدل چې ایراني سرتېرو ته سخته ماتې ورکړي، او د پنځوسو زرو لښکرو له ډلې یې (۲۵) زره تنه ورووژل. د فرح آباد ټېنګه شاهي کلا، د جلفا ارمني مېشته سیمه چې د اصفهان ښار جنوب لورته په یو نیم میلي واټن کې پرته ده ونیوله، او زیات غنیمتونه د افغانانو لاسته ورغلل. په دې حالت کې شاه محمود د سولې غوښتنه وکړه خو صفوي پاچا، شاه حسین د ده له غوښتنو سره موافق نشو. په پایله کې دا ښار په پوره ډول د افغانانو په محاصره کې داخل شو.

د اصفهان محاصره نهه میاشتې اوږده شوه او د دې په ترڅ کې د اصفهان خلك له سختې لوږې سره مخ شول د ایران پاچا(سلطان حسین صفوي) په پای کې تسلیم شو او په خپله یې د شاه محمود هوتك پر سرتاج کېښود او د ایران د خزانو کلی یې ورته وسپارلې چې په دې توګه شاه محمود هوتك د ایران واکمن (شاهنشاه) شو.

## شاه محمود هوتک د اصفهان د واک پر گدۍ

اصفهان ته د شاه محمود له ننوتو وروسته په دې ښارکې د غذايي موادو د قحطی څخه راپېښو شوو ستونزو د مخنيوي او نظم لپاره لازم تدابير ونيول شول. شاه محمود د خلکو د اعتماد د لاسته راوړلو په خاطر له اوسيدونکو سره بد چلند منع کړ، اداري پوستونه او مقامونه يې پخوانيو مسؤولينو ته وسپارل، د قضاوت له پست څخه پرته چې هغه يې يوه افغان قضاوت پوه ملا پير محمد مياجي ته وسپاره، نومورړي په ايران کې له مېشتو بهرنيانو سره هم ښه چلند کاوه خو دې حالت تر ډېره دوام ونه کړ؛ ځکه ځينې داسې پېښې رامنځته شوې چې شاه محمود او ځينې افغانان يې اړ ايستل چې نسبتاً تنده لاره غوره کړي.

يوه پيښه داوه چې په قزوين کې (۱۰۰۰) تنه افغانان په بې پروايۍ سره ووژل شول. بل دا چې هغه مالي کاروان هم د سيستان په سيمه کې چورشو چې له اصفهان څخه د کندهار په لور روان و، او له بلې خوا داسې گنگوسی هم ترغوږو کيده چې د روسيې امپراطور پتر کبير د ايران د نيولو په نيت راوتلی دی او د نومورړي هېواد ځواکونه د (۱۷۲۲ م) کال په جولای کې د والگا له رود څخه تيرېږي او په ايران د يرغل لپاره د هشتدر خان ښار خپل نظامي مرکز ټاکي. عثماني ترکانو هم له وخت څخه په گټې اخيستنې سره د ايران څو سرحدي ښارونه ونيول. دغه پېښې د دې لامل وگرځيدې چې په حکومتي رويه او د شاه محمود په شخصي کړنلاره کې بدلون را شي.

که د گلپايگان، خوانسار، کاشان او شېراز په ښارونو کې د اصفهان افغاني دولت ته د نصر الله خان په مشرۍ وفادارو کردانو او د زبردست خان په مشرۍ افغاني ځواکونو په گډه سره ډېر بريالیتوبو نه ترلاسه کړل خو په خپله شاه محمود د ډېرو بوختياوو په سبب اوهم د افغانانو د خپلمنځيو سياليو او اختلافونو په وجه په دماغي ناروغۍ اخته شو.

په دې حال کې قومي مشرانو د مير عبدالعزيز زوی شاه اشرف هوتك د اصفهان د هوتکي دولت مشرۍ ته غوره کړ او شاه محمود هوتک يې له واکه گوښه کړ. په اصفهان کې د شاه محمود پاچاهي درې کاله دوام وکړ.

## شاه اشرف هوتک

شاه محمود هوتك په (۱۱۳۷ ق/۱۷۲٤ م) کال د شعبان په مياشت کې مړشو او داسې هم ويل کيږي چې د شاه اشرف په امر د خپل پلار د غچ په بدل کې ووژل شو.


شاه اشرف هوتکی

شاه اشرف د اصفهان په تخت باندې له کښيناستلو وروسته د يوه ليک په ترڅ کې د مخلوع سلطان حسين له زوي طهماسب ميرزا څخه چې په همدغه ورځو کې د افغاني ضد لښکر په جوړولو بوخت و، وغوښتل چې له ده سره ملگرى شي ترڅو د روسانو او عثمانيانو لاسونه د ايران څخه غوڅ کړي. شاه اشرف زياتره له لاسه تللي ولايتونه لکه يزد، کرمان، قزوين، تهران، قم او ساوه بېرته ونيول. د نومورړي سپه سالار، سيدال خان ناصري نومېده چې د اصفهان د افغاني دولت د ساتنې په لاره کې د برې هلې ځلې وکړې.

## له بهرنيانو سره نښتې

شاه اشرف په اصفهان کې هغه وخت واکمنی ته ورسېد چې ايران د عثماني ترکيې او روس له ناوړه اقداماتو سره مخ و او نوموړو دوو ګاونډيو ځواکونو د ايران د ځينو برخو لاندې کولو هڅې وکړې. د روسيې دولت ځينې سرحدي سيمې لکه دربند، رشت او باکو تر مازندرانه پورې ونيولې او عثمانيانو هم د ايران لويديځ ولايتونه د سلطانيې، ابهر او د کرمان شاهان په ګډون لاندې کړل. په داسې حالاتو کې، شاه اشرف بايد لومړی خپل داخلي مخالفين په ځای کښېنولې وای او له بله پلوه يې بايد د ايران د ځمکنی بشپړتيا او خپلواکۍ ساتلو لپاره له عثمانيې او روسيې سره ډغرې وهلې وای.

## له ترکانو سره جګړه

سره له دې چې شاه اشرف د يوه اسلامي امت د يوه جز په توګه له ترکانو څخه د دوستی غوښتنه وکړه خو ترکانو(٦٠) زره سرتېرو او (٧٠) عرادو توپونو سره د اصفهان په لور مخ په وړاندې لاړل. په همدې وخت کې د ترکانو هغه ډلې ځواکونو چې د کرد او فراهان ښار د نيولو لپاره مامور شوي وو، شاه اشرف ته پيغام راولېږه چې ايران پرېږدي او سلطان حسين مخلوع موږ ته وسپاري خو شاه اشرف هوتک هغه وړانديز رد کړ او د جګړې لپاره يې چمتو والی ونيوه. ترکان او افغانان د کرد په ښار يا په بله وينا د اصفهان او يزد ترمنځ سيمه کې سره مخامخ شول او د دې په ترڅ کې ترکانو سخته ماتې وخوړه. د ( ١٢) زرو په شاوخواکې ترکي سرتيري ووژل شول او ډېر غنيمتونه ترې پاتې شول.

## له روسانو سره نښته

شاه اشرف د هغو روسانو سره د مقابلې لپاره چې د ايران په خاورې کې مخ په وړاندې تللي وو، خپل سپه سالار، سيدال خان ناصري يې سره له افغاني ځواکونو ورولېږه. په پايله کې په هغې جګړې کې چې په رودسر کې پېښه شوه، روسانو  سخته ماته وخوړه او د روسي ځواکونو مشروارلوف د سولې غوښتونکی شو. په دې وخت کې افغانانو هم چې ځانونو ته يې د ايران په ختيځ کې سختې ستونزې ليدلې، د سولې وړانديز ومانه: په هغه معاهده کې چې د دواړو لورو ترمنځ د(١١٤٢ق/ ١٧٢٩ م) کال په فبروري کې د رشت په ښار کې وشوه، روسانو د ايران په خاورې کې د نور پر مختګ څخه لاس واخيست او ژمنه يې وکړه تر څو سرحدي ايالتونه لکه استرآباد او مازندارن هم بېرته دې هېواد ته پرېږدي. شاه اشرف په دې توګه د ايران افغاني دولت دوه لوی دښمنان وځپل.

## د هوتکي دولت له منځه تلل

شاه اشرف هوتک سره له دومره هڅو ونه توانېد چې د ايران د واک مدعيان او ددې هېواد سيمه ييز ځواکونه له منځه يوسي. په ځانګړې توګه د ايران په ختيځ کې د ملک محمود سيستاني حکومت چې له سيستانه تر خراسانه پورې سيمې يې په و لکه کې وې، او همدارنګه د هرات خپلواکه ابدالي دولت هم هوتکيان له ستونزو سره مخ کول. کندهار هم په دې ورځو کې چې د حاجي ميرويس د بل زوی (شاه حسين) له خوا اداره کېده، له اصفهان سره يې ښې اړيکې نه درلودې او حتی د شاه اشرف هوتک د دولت د له منځه تللو په هيله ناست و. په دې وخت کې د ايران په ختيځ کې د افشار له ټبر

ښخه د نادر په نامه یو نظامي کس سر راپورته کړ نوموړي د یادو شوو سیمه ییزو ځواکونو د له منځه وړلو وروسته، د افغانانو سره مقابلې ته چمتو شو او په پایله کې یې شاه اشرف او افغاني لښکرو ته ماته ورکړه. شاه اشرف هم کندهار ته د راګرځېدو په لاره کې په شورابک کې ووژل شو.


شاه حسین هوتکی

نادر شاه افشار په (۱۱٤۹ق/۱۷۳٦م) کال کې له هلمند څخه په تیریدو کندهار تر محاصرې لاندې ونیوه. شاه حسین هوتک د خپل لښکر سره چې مشري یې د سیدال خان ناصري له خوا کیده څه د پاسه یو کا ل د مهاجمانو په وړاندې مقاومت وکړ او هغه یې پریښود. چې کندهار ونیسي نو په (۱۱٥۱ق- ۱۷۳۹ م) کال کې د هوتکیانو مقاومت پای ته ورسیده. دا ځکه چې د دې نیټې څخه مخکې سیدال خان ناصري او محمد د شاه حسین هوتك زوی په قلات کې د نادر شاه افشار د سر تېرو له خوا نیول شوی وو، او په مرموزه توګه سیدال خان ناصري له دواړو سترګو څخه نا بینا شو. نو په دې توګه هوتکي دولت منحل شو.

شاه حسین هوتك د نادر شاه په امر مازندران ته تبعید او هلته مسموم او مړ شو.



## په ډولګي کې فعالیت

د ډولګي زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. (الف) ډله دې د افغان حکومت په وخت کې ایران ته د روسیې د پاملرنې په لاملونو او (ب) ډله دې د ایران په خاورې کې د عثماني ترکانو د پرمختګ په پایلو خبرې وکړي. دواړه ډلې دې پایلې ښوونکي او زده‌کوونکو ته واوروي.

## پوښتنې



۱) له صفوي حکومت سره د شاه محمود هوتك تر مشرۍ لاندې د افغانانو مهمه جګړه چیرته پېښه، او څه پایلې یې درلودې؟

۲) د کومو لاملونو له مخې شاه محمود د ایرانیانو پروړاندې خپل لومړنی سیاست بدل کړ؟

۳) د شاه اشرف تر مشرۍ لاندې ځواکونو سره د عثمانیانو جګړه چیرته پیښه شوه، او څه پایلې یې رامنځته کړې؟

٤) ولې روسانو په اصفهان کې د افغانانو د حکومت پر مهال د ایران په لور مخه کړه، او څه ډول یې د هغوی د پرمختګ مخه ونیوله؟

٥) سیدال خان ناصري د اصفهان د کومو افغاني شاهانو خدمت ته ملاتړلې وه؟



## له ډولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د هوتکي دولت د نسکوریدو په هکله لنډه مقاله ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې خپلو ډولګیوالو ته وړاندې کړې.

# د هوتکیانو په دوره کې اقتصاد او فرهنګ

د هوتکیانو د واکمنۍ په ۳۱ کلنه دوره کې د سیاسي او نظامي اړخونو سر بېره، ځینې فرهنګي مسایل هم شته چې که څېړې پرې وپوهېږو نو له فرهنګي چارو سره به د هوتکي شاهانو په نیک نیت پوه شو. په ځانګړې توګه د دوی د واکمنۍ په مهال په کندهار کې د علم او فرهنګ د پراختیا زمینه برابره شوه او هوتکي دربار د عالمانو د ملاتړ په لاره کې هڅې وکړې او د کم وخت لپاره فرهنګي رڼا رامنځ ته شوه. په دې لوست کې به دپورتینو مسایلو سره د یادې شوې دورې له اقتصادي ودې سره هم بلد شئ.

## اقتصادي وضع

لکه څنګه چې زموږ د هېواد وېش، ګډوډي او په ځینو برخو د ګاونډیو واکمنۍ د هرات د تیموریانو له نسکورېدو وروسته د افغانستان د وضعې له مهمو ځانګړتیاوو څخه ګڼل کیږي. که هر څو په دې دورې کې داسې معلومات په لاس کې نه لرو چې د خلکو د اقتصادي ودې ښکارندویي وکړي؛ څکه په دې دورې کې، زموږ د هېواد بېلابېلې برخې د پردیو تر فشار او ظلم لاندې وې او معمولاً خلکو دوو دربارونو اصفهان او ډهلي ته درانه مالیات ورکول. په دې حا ل کې زموږ د هېواد یو شمېر خلکو په ځانګړې توګه هغو وګړو چې په ښارونو کې اوسېدل، د هند او ایران سره یې د سوداګرۍ چارې پر مخ بېولې، او په ټولو کې

په کندهار کې سر پټې بازار

کندهار د یادو شوو دوو هېوادونو تر منځ د مهم سوداګریز مرکز په توګه رول لوباوه. او په همدې دلیل، تل د دوو هېوادونو (هندوستان او ایران) ترمنځ د شخړو لامل ګرځېده.

## فرهنګي وضع

په ټولنیز ډول د هرات د تیموریانو دورې له نسکورېدو او د هوتکیانو تر راتلو پورې زموږ په تاریخ کې یوه توره دوره ګڼل کیږي خو په دې دورې کې په ځانګړې توګه وروسته له هغې چې اصفهان د افغانانو لاسته ورغی. په پورتنۍ وضعه کې بدلون راغی څکه افغان هوتکي پاچاهانو برسېره پردې چې سیاسي او نظامي چارې یې پرمخ بېولې، په خپله واکمنۍ کې د دواړو ژبو (پښتو او فارسي) شاعرانو او ادیبانو ملاتړېې هم کاوه.

په دې دورې کې نه یوازې دا چې د وخت د دودیزو علومو چې د معقولو او منقولو په نومونو یادیدل

مخه ونه نيول شوه، بلکې د هوتکيانو په افغاني او ايراني واکمنۍ کې نوموړو علومو ژوند ته ادامه ورکوله. معقول علوم عبارت وو له فلسفې ، منطق ، نجوم رياضيات او همدا رنګه د تفسير، حديث ، فقهې څانګوته يې منقول علوم ويل.

سره له دې چې د هوتکي دولت عمر کم و او د علومو د پراختيا په برخه کې يې بنسټيزو کارونو تر سره کولو ته وخت پيدا نه کړ خو بياهم داسې بېلګې په لاس کې لرو چې د هوتکيانو په دورې کې د علم او فرهنګ د نورمالې ودې ښکارندونه کوي. په ځانګړې توګه په دې برخه کې د شاه حسين هوتک په دورې کې په کندهار کې د لومړني ادبي بنډار جوړښت ډير مهم ګڼل کيږي چې د ياد شوي پاچا له خوا د کندهار د نارنج په قصر کې يو کتابتون جوړشو او په هغه کې د ادب او علم پېژندل شوي څېرې په اونۍ کې يو ځل راغونډيدلې. پخپله شاه حسين هوتک هم په دواړو پښتو او دري ژبو شعرونه ويل او له پوهانو او اديبانو څخه يې ښه ملاتړ کاوه. د بيلګې په توګه نوموړي د پښتو ژبې شاعر ريدي خان ته د محمود هوتک د جګړو داستان په نظم ويلو زر سکې ورکړې.

د دې دورې له پياوړو شاعرانو او پوهانو څخه کولای شو چې د څو تنو څخه يادونه وکړو: ملازعفران، مددخان غلجی، شاه حسين هوتک، داود هوتک، ملايار محمد هوتک، بابوجان بابې، سيدال خان ناصری او د ښځينه شاعرانو له ډلې څخه د شاه حسين هوتک د خور زينب هوتک نوم واخلو. چې ډېره فاضله او پوهه ښځه وه. او برسېره پر دې چې شعرونه به يې ويل له خپل ورور(شاه حسين هوتک) سره به يې د حکومت کولو په چارو کې هم مرسته کوله.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې د (الف) او (ب) په دوو ډلو ووېشل شي. (الف) ډله دې د هوتکيانو د اقتصادي او (ب) ډله دې د فرهنګي وضعې په هکله خپل معلومات وړاندې کړي.



### پوښتنې

١- د کندهار اقتصادي او سوداګريز اهميت په لنډه توګه روښانه کړئ.

٢- د هوتکي دورې د پنځو تنو پوهانو او عالمانو نومونه واخلې.

٣- له فرهنګي څېرو څخه د شاه حسين هوتک د ملاتړ دوې بېلګې يادې کړئ.

٤- د کندهار د نارنج قصر کتابتون د چا په واسطه جوړ شو؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د هوتکيانو په دورې کې د ادبي بنډار په هکله يوه لنډه مقاله وليکي.

# څلورم څپرکی

## په هند کې افغاني پاچاهان

په دې څپرکي کې به په هند کې د افغاني کورنۍ د واک ته د رسېدو او د تاریخ له لوړو او ژورو سره په (۱۲۲۳ تر ۱۷۴۷م). کلونو کې په لنډه توګه پېژندګلوي تر لاسه کړئ.



په ډهلي کې د قطب منار

# د څپرکي موخې

هیله ده چې د دې څپرکي په پایله کې زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:

• په هند کې به له لومړني اسلامي دولت سره پېژندګلوي پیداکړي.

• په هند کې به د افغاني شاهانو او په ځانګړې توګه د سلطان رضیه او سوري شیر شاه له دولتدارۍ سره آشنا شي.

• په هند کې به د افغاني شاهانو ښې او بدې کړنې سره تو پیر کړای شي.

# په هندکې افغاني پاچاهان

په دې لوست کې به هند ته د اسلام ورتګ او خپرېدل او همدارنګه هلته د لومړني اسلامي دولت د رامنځته کېدو سره اشنا شئ. او ورسره به د هندوستان په دولتي چارو کې د افغاني ښځو په ورتیا او ونډې هم پوه شئ.

عربي مسلمانانو په (۹۰ ق/ ۷۱۲ م) کال کې هندوستان ته پام شو. هند ته د ورتګ په وخت کې د سند د پاچا (داهر) په امر د دوی کښتۍ ونیول شوه او ټول سپاره یې ووژل شول.

د عراق والي او د فتحه شوي افغانستان ستر مشر حجاج بن یوسف د محمد بن قاسم تر مشرۍ لاندې یو لوی لښکر د سند د پاچا د ځپلو، او د اسلام د خپرېدو لپاره سیمې ته ولېږه. نوموړي سند او ملتان ونیول، او غوښتل یې چې مخ پر وړاندې لاړ شي، خو د خلیفه له خوا بیرته وغوښتل شو. له هغه وخت وروسته عربي مسلمانان هند ته متوجه نه شول. تر هغه پورې چې په (دریمه هجري/ لسمه مېلادي پېړۍ) کې وار غزنویانو او غوریانو ته ورسېد او دوی د هند په لور لښکرکشي د خپلو پروګرامونو یوه برخه وګڼله.

## په هندکې قطبیه پاچاهان (۶۰۲- ۶۸۹ ق / ۱۲۲۳ - ۱۳۱۰م)

د سلطان شهاب الدین غوري له مړینې (٦٠٢ ق / ١٢٢٣ م) وروسته د غوریانو لویه امپراتوري تجزیه شوه.ترک توکمه قطب الدین ایبک محمد سام غوري یې د هند خپلواکه پاچا اعلان کړ. پلازمېنه یې له لاهور څخه ډهلي ته نقل کړه. نوموړي په ډهلي کې د مشهور جامع جومات او دجام منار په څېرې هلته د قطب منار بنسټ کېښود.

قطب الدین ایبک سخي، زړور او سیاستپوه سړی و. نوموړی له پنځو کلونو واکمنۍ وروسته په (٦٠٧ هـ .ق/ ١٢٢٨ م) کال کې د چوګان په لوبه کې له اس څخه ولوېد او مړ شو. له ده وروسته آرام شاه چې په زوي ولی یې نیولی و د ډهلي په تخت کېناست. په دې وخت کې د سند او بنګال مشرانو د خپلواکۍ بیرغونه پورته کړل. د نوموړي د پاچاهۍ یو کا ل نه و پوره چې د قطب الدین ایبک زوم او د هندوستان د یوې سیمې مشر شمس الدین التمش (ایلتمش) راپور ته شو او دی یې له واک څخه ګوښه کړ.



قطب الدین ایبک

## سلطان شمس الدین التمش



سلطان شمس الدین التمش

د قطبیه پاچاهانو تر ټولو ځواکمن پاچا التمش یا ایلتمش دی چې (۲۵) کاله یې پرهند واکمني وکړه. نوموړي د سند او بنګال مشران اطاعت ته اړ ایستل او د جلال الدین خوارزم شاه غوښتنه یې چې د هند د واکمنۍ سوچونه یې وهل رد کړه. د التمش د واکمنۍ په دورې کې د لومړي ځل لپاره مغولان هند ته متوجه شول او چنګیز خان د جلال الدین خوارزم شاه په لټه کې د سند د سیند تر څنډو ورسید او د خپلو یرغلونو له کبله د هغه ځای له اوسېدونکو وډار شو. وروسته له دې چې ویوهېد مرسته نه شي تر لاسه کولای، د بامیانو په لور راوګرځېد او جلال الدین هم له هند څخه ووت او د ایران په لور وخوځېد. په دې توګه التمش نه یوازې د چنګیزخان له ځواکونو څخه دفاع وکړه، بلکې په عین حال کې یې جلال الدین خوارزم شاه هم پرې نښود چې شمالي هند د خپلو یرغلونو ډګر وګرځوي، د بغداد خلیفه کله چې د ده شهرت او وړتیا د هند د اسلامي دولت د ساتنې په هکله واورېده نو یو پلاوی یې ده ته ورولېږه او ډالۍ یې ورته وړاندې کړې.



سلطانه رضیه

په ۶۳۳هـ / ۱۲۵٤ م کال کې د التمش له مړینې وروسته د ده زوی رکن الدین فېروز شاه واکمن شو. خو له شپږو میاشتو وروسته د ده درباریانو دی له واکمنۍ څخه ګوښه اوبیا یې وواژه، او د ده خور رضیه یې د واک په ګدۍ کېنوله.

## سلطانه رضیه

التمش له ماشومتوب څخه د خپلې لور د ښوونې او روزنې په برخه کې زیاته پاملرنه درلوده. رضیې د ښکلي قرائت په لرلو سره د وخت علوم له لویو پوهانو څخه زده کړل. نوموړې نارینه جامې اغوستې او جګړه ییز تکتیکونه یې هم زده کړل. دې د خپل پلار سره په

اداري او سیاسي چاروکي مرسته کوله.

سلطانه رضیې د خپل ورور رکن الدین چې فیروز شاه نومېده له هغه وروسته په (٦٣٤ هـ/ ١٢٥٥م) کال کې واکمني تر لاسه کړه. د واکمنۍ په لومړیو ورځو کې د خپل پلار د صدر اعظم نظام الملک جنیدي له مخالفت او بغاوت سره مخ شوه. خو په ډېر ښه تدبیر سره له دې اړو دوړ څخه ووته، نظم او امنیت یې ټینګ کړ. سلطانه رضیې هم د خپل هېواد ټولنیز نظام په ښه توګه پر مخ یووړ. نوموړې خواجه مهدي غزنوي چې یو سیاسي او علمي شخصیت و د خپل صدراعظم او ملک سیف الدین ایبک یې د ځواکونو د مشر په توګه وټاکه.

سلطانه رضیې مهم کارونه پوهو کسانو ته وسپارل او په خپله یې د هغوی د کارونو څار نه کوله. د ساتل شوي هېواد په ټولو برخو کې یې قوانین نافذ کړل، نوموړې په خپلواکه توګه خلک خپل حضور ته را بلل او د هېواد چارې یې پرمخ بیوولې. خو د سیف الدین ایبک له مړینې وروسته چې سلطانه رضیې د ده په ځای تور پوستی جلال الدین یاقوت حبشي وټاکه، نو ځینو سردارانو ته کینه ورغله، مخالفت یې پیل کړ، او د نوموړې په وړاندې یې بغاوت وکړ تر څو چې په (٦٣٨ ق / ١٢٥٩ م) کال کې یې پاچاهي ونړېده.

له سلطانه رضیې وروسته معزالدین بهرام شاه او علاوالدین مسعودشاه یو پربل پسې واکمنۍ ته ورسېدل، تر څو وار د سلطان رضیې کشر ورور ناصرالدین محمدشاه ته ورسید نوموړي په هند کې (٢١) کاله واکمني وکړه. دی سوله غوښتونکی، تقوی لرونکی او پرهېزګاره سړی و. په حرمسرای کې یې عادي ژوندکاوه. ویل کېږي چې یوه ورځ شهزادګۍ د وینځې غوښتنه ترې وکړه، تر څو په پخلي کې ورسره مرسته وکړي، ده ځواب ورکړ چې بیت المـال د الله(جل جلاله) د ټولو بنده ګان حق دی او عذر مې ومنه.

په (٦٦٥ق / ١٢٨٦ م) کال کې د سلطان ناصرالدین له مړینې وروسته، د ده وزیر غیاث الدین بلبن په تخت کېناست. د ده دربار د پوهې او فن مرکز و. څرنګه چې امیر خسرو ډهلوي هلته ځانګړې درجه درلوده. سلطان غیاث الدین بلبن له (٢١) کلونو پاچاهي وروسته په ډهلي کې مړشو، د ده له مرګه وروسته د قطبیه دولت لړۍ په هند کې مخ په ځوړ شوه. او نورې افغاني لړیو د غلځي شاهانو، تغلق شاهانو، خضرخانیانو، لودیانو او سوریانو په نومونو یوپربل پسې په واکمنۍ ته ورسېدلې.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې د الف او ب په دوو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د لاندنیو شاهانو څخه دوه پاچاهان تر بحث لاندې ونیسي او د خبرو لنډیز دې د ډلې یو غړی نورو ته وړاندې کړي.

- د سلطانه رضیې دوره
- د سلطانه قطب الدین ایبک دوره
- د سلطانه شمس الدین التمش دوره

خضرخانیانو، لودیانو او سوریانو په نومونو یوپربل پسې په هند کې واکمنۍ ته ورسېدلې.



## پوښتنې

۱- د اسلام دین څه ډول په هندکې خپور او وده یې وکړه؟ په دې هکله څرګندونې وکړئ.

۲- د هغو افغاني شاهي کورنیو نومونه واخلئ چې په هندکې واکمنۍ ته ورسېدې؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

ستاسو په آند، د سلطانه رضیې د پاچاهۍ ځانګړتیاوې څه وې؟ په دې هکله یو مطلب ولیکئ او د ښوونکي له موافقې وروسته یې د ښوونځي د دېوالي په جریده کې راځوړند کړئ.

# لودیان او سوریان

په دې لوست کې به په هند کې د افغاني لودیانو او سوریانو واک ته د رسېدو په څرنګوالي وپوهېږو او په لنډه توګه به په هغو علتونو هم پوه شو، چې د هندوستان په سیاسي صحنه کې د کمزورۍ سبب وګرځېدل.

## لودیان

د پنجاب د نائب الحکومه ملک کالا خان زوی ملک بهلول له (۸۵۸- ۸۶۸ هـ.ق/ ۱۴۷۹- ۱۴۸۹م) کلونو وروسته د خضرخانیه دولت د کمزورۍ له امله د ملک چارې لاسته راوړې او په هند کې د مخ په ځوړ افغاني پاچاهۍ بنسټ یې بیا پیاوړی کړ.

د ملک بهلول لودي له مړینې وروسته د هغه زوی نظام خان چې د سلطان سکندر پاچا په نوم یادېده واکمن شو. نوموړي د هېواد په رغاونه او د علم او پوهې په پرمختګ کې هڅې وکړې. پوهانو او فاضلانو ته یې په درنه سترګه کتل. دري ژبه او خط او همدارنګه د اسلام دین د ده په دورې کې په هندوستان کې ډېره پراختیا ومونده.

په( ۸۹٤ ق/ ۱۵۱۷م)کال کې سلطان سکندر مړ او د ده زوی ابراهیم واکمنۍ ته ورسېد. د ابراهیم د ناسمې ادارې له کبله د پاچاهۍ بنسټ کمزوری شو او په هند باندې د بابر لښکر کشۍ ته زمینه برابره شوه. د پاني پت په ډګر کې د بابر او ابراهیم ترمنځ خونړۍ جګړه ونښته، بابر بری وموند او په بریا لیتوب سره د ډهلي په تخت کښیناست او په (۹۳۰ هـ.ق./ ۱۵۲٦م.) کال کې یې د کوه نور مشهور الماس سره له نورو دولتي خزانو لاسته راوړل خو په ټول هند یې واکمني ترلاسه نه کړه.

په هر حال په هند کې د بابر په وړاندې د افغانانو د مخالفتونو لړۍ روانه وه، په ځانګړې توګه هغه وخت چې بابر مړ شو، او د هغه زوی همایون واکمنۍ ته ورسېد، د افغانانو مخالفت لا زیات شو. ترهغه پورې چې په هند کې د سوریانو د راتګ لپاره زمینه چمتو شوه.

## سوریان

د هندوستان له افغاني ځواکمنو پاچاهانو څخه یو هم فرید د حسن زوی دی. چې په لومړیو کې نوموړي د لاهور د حاکم دولت خان په واسطه د سلطان ابراهیم لودي دربار ته لاره وموندله او شهرت یې ترلاسه کړ، وروسته د بهار نائب الحکومه وټاکل شو. نوموړي د هغې زړورتیا له کبله د شېرخان لقب ترلاسه کړ، چې د زمري د ښکار په وخت کې یې ښودلې وه.

په سند کې د مغولي پاچا سره د شېرخان مخالفت د دې لامل شو چې همایون پر ده برید وکړي. خو په لومړني یرغل کې همایون ته د شېرخان فکري او نظامي لوړتیا معلومه شوه. وروسته له دې شېرخان په (۹۱٦ ق/ ۱۵۳۷ م) کال کې بنګال ونیوه او د دویم ځل لپاره بیا هم له همایون سره مخ شو. په دې مقابله کې جلا ل خان د شېرخان زوی د بهار او بنګال په منځ کې همایون ته ماتې ورکړه او همدارنګه په (۹۱۸ق / ۱۵٤۰م) کال کې د دوی ترمنځ بله جګړه ونښته، او په پایله کې همایون ماتې وخوړه او نژدې د ګنګا په سیند کې ډوب شوی و خو د یوه سقاو له خوا راوایستل شو. نور اړشو چې هند پرېږدي. له دې ځایه خپل ورور عسکري خان ته چې د کندهار حاکم و ورغی خو له هغه څخه یې هم ښه ونه لیدل او ایران ته لاړ.

په دې توګه شېرشاه سوري د شمالي او مرکزي هند د ټولو برخو له نیولو وروسته په کورنیو اصلاحاتو پیل وکړ. د اوبو بندونه، کاروان سرایونه او جوماتونه یې جوړ کړل. د بنګال لاره یې د اټک ترسیند پورې ورغوله او وروسته له هرو پنځو کروو (په ټولیزه توګه ۱۰۰۰ ګزه) یې کاروان سرایونه، د اوبو څاه ګانې او جوماتونه جوړ کړل.

څه وخت چې نوموړي غوښتل د کالنجر کلکه کلا ونیسي، وروسته له څوارلسو کلونو حکمراني او شېر





کلونو واکمنی په (۹۲۳ ق / ۱۵٤٤ م) کال کې د باروتو په یوه چاودنه کې مړ شو.
شېرشاه سوري پوهانو او عالمانو ته پاملرنه کوله، پخپله یې څینې وخت شعر وایه او د قافیې په پوهه کې ښه پوهېده.
له شېرشاه سوري وروسته د ده مشر زوی عادل خان پاچا شو خو نوموړی د سردارانو د مخالفت په وجه لرې او په(۹۲۳ ق/ ۱۵٤٤ م)کال کې د ده کشر ورور جلا ل خان چې د سلیم شاه سوري په نامه یادېده واکمنۍ ته ورسېد.
له یوه پلوه د ده د ورور عادل خان مخالفت او له بل پلوه د همایون لښکرکښۍ د دې لامل وگرځېده چې د نوموړي دولت کمزوری شو تر څو په (۹٦۰ ق /۱۵۸۱ م) کال کې له منځه لاړ، د ده په وخت کې د نیلاب او بنگال ترمنځ دوه زره میله (هر میل دوه زره گامه) لاره جوړه شوه او د هرو دوو میلو ترمنځ کاروان سرایونه جوړ شول.
له سلیم شاه سوري وروسته د هغه دولس کلن زوی فېروز پاچا شو خو له دریو ورځو وروسته د شېرشاه سوري د وراره مبارزخان له خوا ووژل شو او مبارزخان د محمد شاه عدلي په نامه پاچا شو.
د شېر شاه سوري او سلیم شاه آمرین له دې وضعې څخه ناخوښ شول، او هر یوه د سلطان سکندر او سلطان ابراهیم لودي په نومونو په څینو سیمو کې د پاچاهۍ اعلان وکړ. د سختو اختلافاتو د رامنځته کېدو په وجه، همایون وخت غنیمت وگاڼه او په (۹۳۳ ق/ ۱۵۵٤ م) کال کې هند ته لاړ.
که څه هم له دې وروسته افغانان په پوره توگه له صحنې څخه ونه وتل او کله ناکله به د مغولو د سرخوږي لامل کېدل. خو د احمد شاه بابا تر وخته چې د هندوستان زیاتې برخې یې ونیولې، په ښه توگه راڅرگند نه شول.



## په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې د لاندې یادو شوو پاچاهانو د کارونو په هکله د ذکر شوې بېلگې په څېر کار وکړي او وروسته دې د ډلې د یوه غړي له خوا نورو ته وړاندې شي.

| سلطان سکندر لودي | د پوهانو او عالمانو هڅوونکی، په هندوستان کې اسلام او دري ژبې ته پراختیا ورکوونکی. |
|---|---|
| سلطان بهلول لودي | ؟ |
| اعلیحضرت شېرشاه سوري | ؟ |
| سلیم شاه سوري | ؟ |
| محمدشاه عدلي | ؟ |



## پوښتنې

۱- کوم دلایل د دې لامل وگرځېدل چې همایون د دویم ځل لپاره په هندوستان یرغل وکړي؟
۲- سوري شېرشاه څه ډول په هند کې واکمنۍ ته ورسېد او ولې ده ته شېرشاه وایي؟
۳- په هند کې د سوریانو د له منځه تللو دلایل ولیکئ.



## له ټولگي څخه دباندې فعالیت

ستاسو په آند کوم دلایل په هند کې د لودیانو د حکومت د نسکورېدو لامل شول، د دغې موضوع په اړه هر یو له ځان سره څه ولیکئ او په راتلونکي درسي لوست کې یې خپلو ټولگیوالو ته وړاندې کړئ.

# پنځم څپرکی

## په منځنیو او نویو پیړیو کې ګاونډي هېوادونه

په دې څپرکي کې به په منځنیو او نویو پیړیو کې د ګاونډیو هېوادونو له تاریخ سره په لنډه توګه بلدتیا پیدا کړو.

# د څپرکي موخې

د دې څپرکي په پای کې له زده‌کوونکو څخه کېږئ تر څو په لاندې پایلو وپوهیږي:

- په ایران کې به د سیمه ییزو دولتونو د رامنځته کېدو سره بلد شي.
- د صفویانو، افشاریانو او زندیه وو د راڅرګندېدو دلاملونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.
- په هند کې به د بابري دولت له رامنځته کېدو سره بلد شي.
- د چین د یووالي په څرنګوالي به پوه شي .
- په چین کې به د مغولو په واکمنۍ پوه شي.
- په منځنیو او نویو پیړیو کې به د چین د فرهنګي او اقتصادي وضعې سره بلد شي.
- د ایران د سیمه ییزو دولتونو د منځته راتلو او ړنګېدو لاملونه به تحلیل کړای شي.
- په هند کې به د تېموري دولت د رامنځته کېدو لاملونه وپیژني.
- د چین د یووالي انګیزې لړ لیک به دلبندي کړای شي.
- په چین باندې به د مغولو د یرغلونو پایلې تحلیل کړای شي.
- د زده‌کوونکو په ذهن کې به د مرستې او ښه ګاونډېتوب روحیه پیاوړې شي.

# ایران په منځنیو پېړیو کې

د افغانستان او ایران د تاریخ زیاتې برخې سره ورته والی لري. هغو پاچاهانو او لړیو چې په افغانستان واکمنۍ چلوله، د ایران په خاورې یې هم حکم چلاوه. ایران ته د اسلام د دین په راتګ سره، د هغه هېواد تاریخ هم بدل شو. امویانو او عباسیانو به د ایران لپاره پاچاهان او واکمنان ټاکل. خو د ایران په بېلابېلو سیمو کې چې کوم پاڅونونه رامنځته شول، په هغه هېواد کې امیران او د سیمه ییزو لړیو مشران را پیدا شول. له دې ډلې څخه د طبرستان د علویانو، زیاریانو او د آل بویه لړیو د حکومتونو نومونه اخیستی شو.

## د طبرستان علویان

دغه کورنۍ په هاشمي سیدانو پورې تړلې ده چې په (۲۵۰ ق/ ۸٦٤ م) کا ل کې یې د زید د زوی سید حسن په مشرۍ د ایران په اوسني طبرستان کې د خپلواکه حکومت بنسټ کېښود. حسن زړور سړی و، او ځان به یې داعي کبیر باله. نوموړي ټول طبرستان او ری (تهران) و نیول او عباسي آمرین او مامورین یې له دې سیمو څخه وشړل. نوموړي تر ( ۲۷۰ق/ ۸۸۳ م) کال پورې حکومت وکړ خو له حسن څخه وروسته نورو علوي پاچاهانو هم واکمني وکړه. د علوي لړۍ تر ټولو مشهور پاچا د علي زوی حسن ګڼل کیږي چې په ناصر کبیر باندې مشهور و، نوموړی وتوانېده چې ساماني ځواکونه چې یوه موده یې د طبرستان واکمني تر لاسه کړې وه، کلکه ماته ورکړي او د (۲۹۰ ق/ ۹۳۰م) کال په ژمي کې یې د ساماني ځواکونو(۷۰۰۰) تنه ووژل. په پایله کې سامانیانو له علویانو سره سوله وکړه، او ټول طبرستان د ناصر کبیر(د علي زوی حسن) په ولکه کې شو. خو مخکې له مړینې یې ټولې حکومتي چارې خپل زوم حسن بن قاسم ته وسپارلې. د نوموړي په زمانه کې د علوي حکومت چارې ګډې وډې شوې او په پایله کې په (۳۱٦ ق/۹۲۸م) کال کې د طبرستان علویانو حکومت ړنګ شو.

## زیاریان

د علوي حکومت له راپرځېدو وروسته، د دې حکومت نظامي واکمنو او سردارانو بغاوت وکړ او د طبرستان سیمه په ډېرو سیمه ییزو خپلواکه حکومتونو ووېشل شوه.

د دې سردارانو له ډلې څخه یې یو مشهور د زیار زوی مرداویج نومېده. نوموړي د خپلواکه حکومت د رامنځته کېدو لپاره، لومړی د طبرستان سیمې د واک غوښتونکو سردارانو په مخه کې ودرېد، او د طبرستان ښار په نیولو یې د زیاریانو د حکومت بنسټ کېښود. وروسته یې د ګرګان او اصفهان ښارونه هم د خپلې واکمنۍ یوه برخه وګرځوله. نوموړي د خدمت لپاره د ترکي غلامانو په نیولو سره ځواکمن لښکر رامنځته کړ، خو له ترکي غلامانو سره د بد چلند په سبب، دوی بغاوت وکړ او پخپله مرداویج یې هم وواژه.

له مرداویج څخه وروسته د ده ورور وشمګیر واکمنۍ ته ورسېد. نوموړي د واکمنۍ ټوله موده د بویه له زامنو سره په جګړو او مبارزو کې تېره کړه او په پایله کې یې له دوی څخه ماتې وخوړه او په (۳۲۰ق/۹۳۲ م) کال کې د بویه زامنو حکومت را منځته شو.

## آل بویه

نوموړي ابو شجاع په نامه یوه سړي ته منسوب دي چې په لومړیو کې یې له مرداویج سره مرسته کوله او








درې زامن يې د مرداويچ په لښکر کې لوړو نظامي مقامونو ته رسېدلي وو.
آل بويه د بغداد(عباسي) خلافت د کمزورتيا په دورې کې، وروسته له هغې چې له زياريانو څخه يې د خپلواکۍ اعلان وکړ، پخپله يې په اصفهان کې د خپلواکه حکومت بنسټ را منځته کړ او په لنډ وخت کې يې د ايران بېلابېلې سيمې په خپله واکمنۍ کې شاملې کړې. نوموړو په (۳۳٤ ق/ ۹٤۵م) کال کې د عباسي خلافت د راپرځېدو پرځای يوازې د المتکفي په ځای د المطيع خليفه په راتگ بسنه وکړه. په بغداد باندې د آل بويه واکمنۍ، د عباسي خلفا وو دريځ په پوره توگه متزلزل کړ.
د آل بويه ترټولو مهم مشران حسن رکن الدوله او احمد هزالدوله نومېدل. چې د(۳۲۰ ق نه تر ۳۵۷ ق /۹۳۲-۹٦۸م) کلونو په منځ کې يې د ايران په سويل، ري(اوسني تهران) او کرمان واکمني کوله.
آل بويه په پای کې د غزنويانو او سلجوقيانو لخوا چې د عباسي خلافت له ملاتړ کوونکو او غوښتونکو څخه وو، له منځه لاړل. په منځنيو پېړيو کې په ايران باندې له غزنويانو، سلجوقيانو او خوارزم شاهانو درو لړيو پرته تيموريانو هم واکمني کړېده.



## په ټولگي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په درو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د طبرستان د علويانو، دويمه ډله دې د زياريانو د حکومت د رامنځته کېدو او درېمه ډله دې د آل بويه حکومت د رامنځته کېدو په څرنگوالي خبرې وکړي او پايله دې له نقشې څخه په گټې اخيستنې سره د ډلو استازي نورو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د علوي حکومت د رامنځته کېدو او د دې لړۍ د مشهورو پاچاهانو په هکله څومره پوهېږئ؟
۲- ستاسو په اند د علويانو حکومت څه ډول رنگ شو؟
۳- د زياريانو حکومت د چا له خوا او څه ډول رامنځته شو؟
٤- ستاسو په نظر د آل بويه حکومت څه ډول رامنځته شو؟
۵- ال بويان په پايله کې د ............ او ............ له خوا راو پرځېدل؟



## له ټولگي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د ايران د سيمه ييزو حکومتونو لکه طبرستان د علويانو، زياريانو او آل بويه حکومتونو په هکله مطالب راغونډ او هغه دې په راتلونکي درسي ساعت کې ټولگيوالو ته وړاندې کړي.
ښوونکی دې د علمي سرچينو او اخځليکونو په برخه کې زده‌کوونکو ته لارښوونه وکړي.

# ایران په نویو پېړیو کې

د اېران په تاریخ کې د صفوي دولت را منځته کېدل مهم ټکی ګڼل کېږي. دوی دې هېواد ته داسې سیاسي مرکزیت او ځانګړی هویت وباښه چې له پخواني حالت سره یې توپیر درلود. له دوو پېړیو څخه د زیاتې واکمنۍ په ترڅ کې ډېرې مهمې سیاسي او نظامي پیښې رامنځته شوې.
د افغانانو په واسطه د دوی د واکمنۍ راپرځېدل هم د دې لامل وګرځېده چې په دې هېواد کې د نوي حکومتونو لړۍ رامنځته شي. سر بېره پردې، په دې دورې کې د ایران اړیکې له نړۍ، او په ځانګړې توګه له اروپا سره ټینګې شوې. په دې لوست کې به د پورته موضوعاتو په هکله مطالب ولولئ.

## صفویان

د شاه اسماعیل صفوي په واسطه د نویو پېړیو یعنې په (۹۰۶ق/۱۵۰۱ م) کال کې د صفوي حکومت را منځته کېدل د ایران د تاریخ ډېره مهمه برخه ګڼل کېږي؛ ځکه د ایران وضعه وروسته له دې پېښې په پوره ډول بدله شوه. صفویان وتوانېدل چې د ایران سیاسي ګډوډۍ او ټولنیزو ناخوالو ته د پای ټکی کېږدي. دوی د ایران خاوره یو موټی کړه. د صفوي لړۍ د مشهورو پاچاهانو له ډلې څخه چې یو یې لومړی شاه عباس نومېږي. نوموړي د خپلو وفاداره سلاکارانو او سرتېرو په واسطه د صفوي حکومت بنسټ څواکمن کړ. بیا یې د یو لړ پرله پسې لښکرکشیو په واسطه، سیمه ییز امیران (سرکښ قزلباشان) وټکول، او په هېواد کې یې د ایران دولت د خارني لمنه وغوړوله. د نوموړي د واکمنۍ په دورې کې امن او امنیت ټینګ شو. د سوداګرۍ، کرنې او صنعت چا رو پراختیا ومونده. د اصفهان ښار د صفویانو د پلازمېنې په توګه د ایران په یوه ډېر ښکلي او لوي ښار بدل شو.

د صفویانو په دورې کې له نړۍ او په ځانګړې توګه له اروپا سره د اېران نوې اړیکې ټینګې شوې؛ ځکه په کوچنۍ آسیا کې د عثماني څواکمنې امپراتورۍ په رامنځته کېدو سره، اروپایانو په هوسا توګه نشوای کولای چې د ځمکې له لارې ختیځ ته تګ او راتګ وکړي. له دې کبله چې اروپایانو له عثماني امپراتورۍ سره دښمني لرله، نو د عثمانیانو له ختیځ ګاونډي ایران سره یې ښې اړیکې ټینګې کړې. وروسته یې بیا د کسپین(خزر) سمندرګي له لارې ختیځو سیمو ته هم لاره پیدا کړه. په دې وخت کې د ایران او عثمانیانو اړیکې هم سړې شوې وې، او اروپایانو له دې وضعې څخه ګټه پورته کړه. ایران په همدې وخت کې د اروپایانو له پوځي پوهې څخه د وسلو جوړولو او نظامي فنونو په برخه کې ډېره ګټه واخیسته. د دوی په مرسته یې د خپلو عسکرو د زده کړې او پوځي څواکونو د سمبالولو په برخه کې ګټه ترلاسه کړه. د آنتوني(Antony) او رابرت شرلي (Robertsherly) د دووانګلیسي ورونو په مرسته یې جګړه ییز توپونه او لاسي تفنګچې جوړې شوې. صفویانو د ایران دولت وروسته له اسلام څخه د شهرت ترټولو لوړو پوړ یو ته ورساوه.





## افشاریان

د صفوي حکومت له پرځېدو وروسته، افغانان پر ایران باندې د صفویانو په ځای واکمن شول. خو په ایران باندې د افغانانو واکمني ډېره اوږده نه شوه؛ ځکه نادر افشار چې په اصل کې د ترکمنانو د افشارو له ټبر څخه و، یو ځل بیا ایرانیان په ځان را ټول کړل. نوموړي داخل د افغانانو او ازبکو په ګډون له بېلابېلو ډلو څخه لښکر جوړ کړ، د ایران د زیاتو ښارونو د فتحې په برخې کې د پوځي وړتیاوو په ښودلو سره یې په ټول ایران واکمني تر لاسه کړه او دیوه نوي حکومت د رامنځته کېدو لپاره یې لاره اواره کړه. په دې وخت کې د نادر په وړاندیز د آذربایجان په شمال ختیځ د مغان په سیمې کې د قبیلو د مشرانو، مخورو او روحانیونو یوه غونډه راوبلل شوه او له یو لړ خبرو اترو وروسته نادر افشار د ایران د پاچا په توګه وټاکل شو.

نادر د مرکزي واکمنۍ له جوړېدو وروسته، له ایران څخه د بهرنیانو د شړلو لپاره متې را ونغښتې. په دې توګه ، روسان او عثمانیان چې په ایران یې یرغل کړی و، خپلو سیموته په شا وتمبول. وروسته یې د هند پرلور لښکر وخوځاوه نوموړي په هند کې د شاه جهان په امر جوړ شوی د طاووس تخت چې د شاه د ځای ناستي لپاره جوړ شوی و سره د بې شمېر و غنیمتونو او د کوه نور مشهور الماس چور کړل او له ځان سره یې ایران ته یوړل.

د نادر شاه په زمانې کې د مشهد ښار د نوموړي د اوسېدو په اصلي مرکز، او د دولتي خزانو د ساتلو په ځای بدل شو.

دنادر افشار د ځانګړو پوځي سیاستونو او اقداماتو په اړه، ایران د لږې مودې لپاره وتوانېده چې افغانستان، هند او د کوچنۍ آسیا ځینې برخې لاندې کړي. خو د نادر افشار د حکومت وروستي کلونه د ایران د خلکو لپاره ډېر ستونزمن وو او په (۱۱۶۰ ق/ ۱۷۴۷م) کال کې د نوموړي له وژلو وروسته ایران په کورنیو ګډوډیو او اختلافاتو کې راښکیل شو.

## زندیه

د نادر افشار په وژلو سره د ده د حکومت بنسټ ونړېد او په ټول ایران کې کورنۍ جګړې له سره پیل شوې. د نادر افشار مامورینو، خراسان د خپلې واکمنۍ لپاره غوره کړ. د ایران نورې برخې هم د پوځي مشرانو او د قبیلو مخورو لاس ته ورغلې چې تل به یو له بل سره په جګړو کې ښکیل وو. خو په دوی کې کریم خان زند ډېرواک پیدا کړ. نوموړی د زند له قبیلې څخه و. کریم خان د خپلې قبیلې له خلکو او

سرتېرو سره د اصفهان ښار له نيولو وروسته ، د يو لړجګړو په ترڅ کې خپل ټول دښمنان له منځه يوړل او ځان يې وکيل الرعا يا( د خلکو استازي) ونوماوه او د پاچاهۍ ځوکۍ يې د صفوي کورنۍ دريم شاه اسماعيل ته پرېښوده. نوموړی( دريم شاه اسماعيل) په ښکاره توګه د کريم خان زند د رقيب علي مردان خان په مرسته واکمنۍ ته



د کريم خان زند ماڼۍ

رسېدلی و. د کريم خان زند د استازيتوب دوره له بې شمېره کورنيو جګړو سره همغاړې وه، ځکه په خراسان کې شاهرخ افشار، په مازندران کې محمد حسن خان قاجار او په آذر بايجان کې آزاد خان افغان د پاچاهۍ غوښتونکي وو. کريم خان زند وروسته د ډېرو جګړو په پای کې د (خشت) په جګړه کې آزاد خان افغان ته ماتې ورکړه او آذربايجان يې هم ونيوه. له دې وروسته په ايران کې دوې سرسختې سيالې ډلې يو د بل په وړاندې پاتې شوې. يعنې قاجاريان د ايران په شمال او زنديان په سوېل کې، په پايله کې په يوه جګړې کې محمد حسن خان قاجار ووژل شو او زوی يې آقا محمد خان د کريم خان زند له خوا بندي شو او عملاً د ګروګان په توګه په زنديه دربار کې پاتې شو.

هغه وخت چې له کورنيو جګړو څخه د کريم خان زند زړه ټول شو دريم شاه اسماعيل هم د ځوانۍ عمر ته ورسېد او بايد د هېواد چارې نوموړي ته سپارل شوې وای. خو د مشرانو په هغه غونډه کې چې په اصفهان کې رابلل شوې وو. د نوموړي د لياقت د نه لرلو له امله يې له واک څخه د ګوښه کولو پرېکړه وکړه. او پاچاهي يې کريم خان زند ته وسپارله. کريم خان زند د شيراز ښار د خپل مرکز په توګه وټاکه. نوموړي د کورنۍ امنيت له ټينګښت وروسته د سوداګرۍ او صنعت د پراختيا په برخې کې هڅې وکړې. په همدې وخت کې انګريزانو، ايران ته د ورتګ په لاره کې ډېرې هڅې وکړې. انګريزانو د خپلو ښکېلا کې، فعاليتونو د پراخولو لپاره له زنديه دولت سره تړون لاس ليک کړ، چې د هغه په اساس يې د فارس خليج په بندرکې سوداګري کولای شي.





په (۱۱۹۳ ق/ ۱۷۷۹م) کال کې د کريم خان زند له مړينې سره، په ايران کې کورنۍ جګړې پيل شوې. په پايله کې د قاجار په نامه د واک يو لوري په ايران کې د حکومت مشري لاسته راوړه. په دې توګه ايران په خپل معاصر تاريخ کې ورګډ شو.



## په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په درو مناسبو ډلو وويشل شي. لومړۍ ډله دې د ايران صفوي لړۍ په هکله خبرې وکړي، دويمه ډله دې د افشاريانو د حکومت په هکله په خبرو پيل وکړي او دريمه ډله دې ، د کريم خان زند د حکومت په هکله سره بحث وکړي او پايله دې د ټولو ډلو استازي په پرتليزه توګه نورو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د صفويانو حکومت د چا له خوا جوړ او هم د دې کورنۍ تر ټولو مشهور پاچا په هکله معلومات ورکړئ.

۲- ستاسو په اند د ايران او اروپايانو ترمنځ اړيکې څنګه ټينګې شوې او ولې؟

۳- نادر افشار څوک و؟

٤- د هند په لور د نادر افشار د لښکرکشيو په هکله څومره پوهيږئ؟

٥- ستاسو په اند کريم خان زند څرنګه واکمنۍ ته ورسيده؟ توضيح يې کړئ.

٦- د انګريزانو سوداګري له ايران سره په کومو لاندې بندرونو کې تر سره کېده؟

الف: د عباس بندر ب د خليج فارس بندر ج: د خزر سمندر کې



## له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې په نويو پېړيو کې د ايران د وضعې په هکله لږ تر لږه دوه مخه مطلب راټولونکي درسي ساعت ته چمتو کړي.





# هند په منځنيو پېړيو کې

د هند، پاکستان او اوسني بنګله دېش هېوادونه، پخوا د هند د شبې قاره په نامه يادېدل. ډېر وختونه يې ګډ برخليک او تاريخ درلود خو په شلمه پېړۍ کې دا هېوادونه سره بېل شول. په منځنيو پېړيو کې د دې سيمې تاريخ، دګوپتايانو د لړۍ او سيمه ييزو حکومتونو له راپرځېدو وروسته لوی بدلون ومونډ، د اسلام راتګ چې د افغانانو په هڅو سره په هند کې خپور شو، او همدارنګه د غزنويانو او غوريانو په واسطې د سيمه ييزو حکومتونو را منځته کېدلو سره به چې د دې لوست موضوع ده، بلدتيا وموموځ.

په منځنيو پېړيو کې د هند لوی هېواد دګوپتايانو له خوا اداره کېده. دې لړۍ تر (۵۵۰ م) کال پورې د هند په شمال کې خپلې واکمنۍ ته دوام ورکړ چې د هند د فرهنګ تر ټولو روښانه دوره ګڼل کېږي. په دې دورې کې په ځانګړې توګه رياضي علومو ته پاملرنه وشوه. د ګوپتايانو له راپرځېدو وروسته د هند په شمال کې ډېر حکومتونه را منځته شول او شاوخوا (۷۰) کوچنيو سيمه ييزو حکومتونو په دې سيمې واکمني چلوله. دغه سياسي وېش څو پېړۍ دوام وکړ. د دې حکومتونو تر ټولو ځواکمن يفتاليان وو. په همدې وخت د هند په سويل کې د ګويتا پاتې شونو هم خپل ژوند ته ادامه ورکړه. دوی له اعرابو او د آسيا د سويل او منځنې ختيځ خلکو سره راکړه ورکړه او سوداګريزې اړيکې ټينګې کړې. دې اړيکو د اسلام دين تر څرګندېدو پورې دوام وکړ.




مسلمانان د لومړي ځل لپاره په(۹۳ق، ۷۱۱ م) کال کې هندوستان ته راغلل. نومړو د سند سيند تر څنډو پورې سيمې لاندې کړې. دغه سيمې د اوسني پاکستان برخه ده. له دې وخته ( اتمې زېږديزې پېړۍ) څخه وروسته تر يوو لسمې زېږدېزې پېړۍ پورې، لويديځ هند له اسلامي نړۍ سره نژدې اړيکې ټينګې کړې په دې پېړۍ کې د اسلام بلنه ورکوونکو د هندوانو په منځ کې دآسماني دين تبليغ خپراوه.

له بله پلوه په (۳۸۸-۴۲۲ق، ۹۹۸-۱۰۳۰ م) کال کې د سلطان محمود غزنوي له خوا په هندوستان باندې واکمن کېدل د اسلام ريښې په هند کې ټينګې کړې او ځواکمن شو. له غزنويانو وروسته غوريانو هم پر هند حکومت وکړ او سلطان شهاب الدين محمد غوري د هند په شمال کې نژدې د ګنګ تر روده سيمې ونيولې. نومړي وروسته له ډېرو هڅو ډهلی هم فتح کړ او دا ښار يې د قطب الدين ايبک په نامه يوه ترکي مريي(غلام) ته وسپاره. غوريان وروسته د ډهلي له نيولو وتوانېدل چې تربنګال پورې





سیمې په خپل واک کې راولي.


د قطب الدین ایبک زیارت

په (٦٠٣ق، ١٢٠٦م) کال کې د سلطان شهاب الدین محمد غوري ابن سام له مړینې وروسته د قطب الدین ایبک واکمنۍ ته لاره اواره شوه. ایبک خان د هندوستان خپلواکه پاچا ونوماوه. نوموړي د ډهلي ښار خپله پلازمېنه وټاکله نو ځکه هغه خلک چې له ده څخه وروسته واکمنۍ ته ورسېدل. د ډهلي پاچاهانو په نوم یاد شول. هغه حکومت چې قطب الدین ایبک په ډهلي کې رامنځته کړ، تر ډېرې مودې یې په هند کې دوام وکړ ان د تیمور گورگاني یرغلونو هم ونشوی کړای چې هغه حکومت له پښو وغورځوي او نوموړو د (لسمې هجري پېړۍ تر وروستیو/ شپاړسمې زیږدیزې پېړۍ) پورې په هند کې واکمني وکړه له دې وروسته په هندوستان کې د لودیانو او سوریانو افغاني حکومتونه چې په تېرو لوستونو کې مو ولوستل را منځته شول.



## په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په د وو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په هند کې د گوپتایانو د لړۍ او سیمه ییزو واکمنیو په هکله او دویمه ډله دې هند ته د اسلام په راتگ او د غزنویانو او غوریانو حکومتونو په هکله خبرې وکړي. پایله دې د ډلو استازي نورو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

١- په هند کې د گوپتایانو حکومت تر کوم کال پورې دوام وکړ او له فرهنگي پلوه څه ډول دوره وه؟ روښانه یې کړئ.

٢- مسلمانانو د لومړي ځل لپاره د هندوستان کومې سیمې لاندې کړې؟

٣- په هند کې د غزنویانو او غوریانو د حکومتونو په هکله لنډ معلومات وړاندې کړئ.

٤- قطب الدین ایبک څرنگه واکمنۍ ته ورسېد؟



## له ټولگي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې په هند کې د غزنویانو او غوریانو د واکمنیو په هکله مطالب چمتو او په راتلونکي درسي ساعت کې دې له ځانه سره راوړي.

# هند په نویو پېړیو کې

په دې لوست کې به د بابر په هکله چې څه ډول یې په هند کې حکومت را منځته کړ، او همدارنګه د نوموړي د ځایناستو په اړه چې له ده وروسته یې په هند کې حکومت وکړ، او هم به د ختیځ هند په نوم انګلیسي کمپنۍ له خوا د بابر ي پاچاهانو سره د اړیکو د ټینګښت او نفوذ په څرنګوالي مطالب ولولئ.



ظهیرالدین بابر د خپل درباریانو سره

## بابریان (ګورکانیان)

لومړنی کس چې په هندوستان کې یې د بابري لړۍ بنسټ کېښود، ظهیرالدین محمد بابر نومېده، نسب یې تېمور ته رسېده په خپله تېمور هم په مغولو پورې اړه لرله او په همدې دلیل په تاریخي سرچینو کې له بابریانو څخه د هند دګورکانیانو او مغولو په نوم هم یادونه شوې ده.

بابر واک غوښتونکی سړی و. د افغانستان د ډېرو سیمو تر نیولو، وروسته یې د هندوستان د نیولو هوډ وکړ او له (۹۲۵ ق ۱۵۱۹م) کال څخه یې په هغه هېواد یرغلونه پیل او تر (۹۳۲ق/ ۱۵۲۶م)کال پورې یې پنځه ځله په دې سیمه یرغلونه وکړل. په پایله کې په ډهلي کې د ابراهیم لودي د حکومت په رنګولو یې ، هغه هېواد په خپله ولکه کې راوست.

د لودیانو په ماتې سره د هند په تاریخ کې یوه نوې دوره پیل شوه چې( ۱۸۱ )کاله یې دوام وکړ. په دې موده کې شپږو لویو ګورګاني (بابري یا مغولي) پاچاهانو پر هند حکومت وکړ.

بابر باتدبیره پوه او زړور سړی و. نوموړي سربېره پردې چې په هندوستان کې اوسېده، کابل هم پرې ګران و. بابر مخکې له مړینې وصیت وکړ چې د کابل له باغونو څخه په یوه کې خښ شي. په پای کې وروسته له څلورو کلونو واکمنۍ د (۴۹) کلونو په عمر مړشو. او مړی یې له هند څخه کابل ته را انتقال کړ، او په هغه بڼ کې یې خښ کړ چې تل یې خوښاوه چې اوس د بابر بڼ په نامه یادیږي.

## د بابر ځایناستي

هغه وخت چې بابر مړشو، زوی یې همایون واک ته ورسېد. همایون لس کاله په هند حکومت وکړ. نوموړی پوه او فرهنګي سړی و. خو د پلار په څېر یې پوځي پوهه نه درلوده. په همدې وخت (۱۵٤۰






په کابل کې د بابر بڼ

م) کال کې د شېر شاه سوري په نامه یوه تکړه افغان د همایون حکومت له ګډې وډې وضعې څخه ګټه واخیسته او د همایون ځواکونو ته یې ماتې ورکړه، په دې توګه افغانان یو ځل بیا په هند کې واکمنۍ ته ورسېدل.

همایون له دې پېښې وروسته اړشو چې د ایران صفوي دربار ته پناه یوسي. خو نوموړي په هند کې د شېرشاه د مړینې په سبب له بدې او نا آرامې وضعې څخه ګټه واخیسته او د ایران د صفوي ځواکونو په مرسته له واکمنۍ څخه د (۱٦) کلونو وروسته یو ځل بیا د هند په تخت کښېناست. په دې توګه، په هند کې د افغانانو د واکمنۍ دوره هم ختمه شوه.

## جلال الدین محمد اکبر

د هند پاچاهۍ ته د همایون راګرځېدو، زیات دوام ونه کړ، ځکه نوموړي دا ځل یوازې شپږ میاشتې د هند پر تخت پاتې شو او په (۹٦۳ ق/ ۱۵۵٦ م) کال کې مړشو. له ده څخه وروسته د نوموړي ۱۳ کلن زوی جلال الدین محمد اکبر د هند د پاچاهۍ پر ګدۍ کېناست.

جلال الدین محمد اکبر زړور سړی او همدارنګه یو تکړه او هوښیار سردار و. نوموړي د خپل پوه او هوښیار وزیر ابوالفضل علامي په مرسته د هند د هېواد چارې منظمې پرمخ بوتلې، د خپلو خلکو د هوساینې لپاره یې ډېرې هڅې وکړې. اکبر د هندي کورنیو د خواخوږۍ جلبولو لپاره د جزیې قانون لغوه اعلان کړ. راجپوت اشراف یې د امپراتورۍ لوړو څوکیوته ورسول او په خپله یې له یوې راجپوتې هند وې سره واده وکړ.

اکبر پاچا د یوه پوځي سردار په توګه د تلپاتې پوځ په جوړولو سره د خپل حکومت بنسټ لا ځواکمن کړ. نوموړي بیا وروسته د راجپوتو قبیلو په مرسته کوچني سیمه ییز حکومتونه له منځه یوړ. او له سویل نه تر شماله د هند په پراخه سیمو واکمن شو. په اصل کې د اکبر پاچا د حکومت په زمانه کې په هند کې د مغولو امپراتورۍ د ځواکمنتیا وروستي پړاو ته ورسېده. نوموړي وتوانېده چې د بنګال ، کشمیر او سند حکومتونه هم لاندې کړي. اکبر پاچا په پای کې په (۱۰۱٤ ق/ ۱٦۰۵م) کال کې له پنځو سوکلونو پاچاهۍ وروسته مړشو.

### نور هم زیات وپوهېږئ
### دروښنیانو نهضت

د اکبر پاچا د حکومت په دورې کې، ځینې وختونه د ګورکاني حکومت ضد پاڅونونه او حرکتونه پیښېدل. له دې پاڅونونو څخه یوهم د بایزید انصاري (پیرروښان) په مشرۍ د افغانانو پاڅون و دغه پاڅون ته ځکه د روښانیانو پاڅون ویل کېږي چې مشر یې پیر روښان نومېده. سره له دې چې بایزید انصاري په یوې جګړې کې مړشو خو د افغانانو نهضت د ٦۵ کلونو لپاره د مغولو په قلمرو په ځانګړې توګه په پښتونخوا کې د هند د ګورکانیانو پر وړاندې ادامه لرله.



## جهانګير

له اکبر پاچا وروسته د ده زوی سليم د جهانګير په نامه چې له راجپوتې مور څخه زېږېدلی و، د هندوستان پاچا شو. نوموړي تر يوه حده هغو اصلاحاتو ته دوام ورکړ چې پلار يې منځته راوړي وو. خو د ده په زمانې کې د انګرېزانو د نفوذ هڅې په هند کې زياتې شوې. په (۱۰۱۷ق/۱۶۰۸م) کال کې د انګليس استازی د جهانګير دربار ته ومنل شو. او وروسته له دې د سرتوماس روند (Sirtomos Roand) په نامه انګريزي سفير د انګريزانو لپاره د سوداګرۍ حق واخيست. او په دې توګه د انګريزانو استعمارګري نفوذ په هند کې پيل شو. همدارنګه د ده په زمانې کې د ايران پاچا، شاه عباس صفوي هم په کندهار يرغل وکړ. هغه وخت چې د هغه ښار حکمران د هند له پوځي مرستې څخه نا هيلی شو، کندهار يې بيا صفوي ايران ته پرېښود.

## شاه جهان

له جهانګير څخه وروسته د ده زوی شاه جهان پاچاهۍ ته ورسېد. نوموړي (۳۰) کاله په هند حکومت وکړ. شاه جهان د هند د جوړولو(معمارۍ) ډېر مينه وا ل و او امر يې وکړ چې د طاووس تخت په نامه له قيمتي غميو څخه يو تخت ورته جوړ کړي خو د خلکو د بېوزلۍ او ستونزمن ژوند پروا يې نه لرله، او تر هغه پورې چې د دکن او ګجرات په سيمو کې سخته لوږه راغلې وه، نوموړي بياهم د خلکو د مرستې لپاره ګامونه اوچت نه کړل. همدا رنګه د ده په امر د سکانو مشر ووژل شو او دغه کار په هند کې د ګورکانيانو د حکومت پر وړاندې د سکانو د پاڅون پيل و.

## اورنګزېب

اورنګزېب د عالمګير په لقب سره د مغولي لړۍ د وروستي پاچا په توګه په (۱۰۶۹ ق/۱۶۵۹م) کال کې وروسته له هغه پاچا شو چې خپل پلار شاه جهان يې زنداني کړ. نوموړی نه يوازې د نيکه (اکبر) په څېر د هنر او ادبياتو او نه د پلار(شاه جهان) په څېر د معمارۍ مينه وا ل و بلکې يو متعصب مذهبي او سخت دريځه پاچا و. اورنګزيب راجپوت هندوان له لوړو حکومتي څوکيو څخه لرې کړل او له هندوانو يې جزيې اخيستلې، او د هندوانو زياتره معبدونه يې ړنګ او د دوی ځمکې يې مسلمانانو ته ورکړې.

د هند د بابري حکومت کمزورتيا د اورنګزيب له زمانې را پيل شوه، او په (۱۱۱۹ ق/۱۷۰۷م) کال کې د نوموړي له مړينې سره سم يې د لومړي شاه عالم په نامه زوی او بيا يې بل زوی لومړی بهادر شاه واکمنۍ ته ورسېد.

له دې وروسته په هند کې سيمه ييز ځواکونه واک ته ورسېدل. په همدې وخت کې د بريتانيا د ختيځ هند کمپنۍ ته په هند کې د لا ډېرو لاسوهنو زمينه برابره شوه، او په پايلې کې د غه پراخ هېواد په (۱۲۵۵ ق/۱۸۳۹م) کال کې رسماً د برېتانيې تر سوري لاندې راغی.

سره له دې چې يرغلونو دوی کمزوري کړل خو د بريتانيا د ختيځ هند کمپنۍ چې د جهانګير له وخته په هند کې نفوذ پيل کړی و، د نولسمې پيړۍ په لومړيو کې د خپل ملاتړ لاندې راوستل، او په ۱۹۴۷م کال کې خپلواکی لاسته راوړه..





## د ژباړې پوهېدنې لپاره

### د خټکو نهضت

د اورنګزیب د واکمنۍ په دوره کې، د پښتو نخوا په سیمو کې د خوشحال خان خټک پر مشرۍ د افغانانو نهضت پیل شو. خوشحال خان خټک په ډېره میړانه، او زړور توب درې کاله په هند کې د ګورګانیانو په وړاندې مبارزه وکړه. خو د یوې جګړې په ترڅ کې چې له اورنګ زیب سره پېښه شوه، ډېر افغانان په هغه کې له منځه لاړل او په خپله خوشحال خان خټک د اورنګ زیب په لاس بندي او څلورنیم کاله یې د اورنګ زیب په زندان کې تېر کړل. خوشحال خان خټک د پښتو ژبې له مشهورو شاعرانو او لیکوالو او همدا رنګه زموږ د هېواد د زړورو پښتنو سردارانو له ډلې څخه دی.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هند د بابریانو د لړۍ د رامنځته کېدو او د همایون د حکومت په هکله. دویمه ډله دې د جلا ل الدین اکبر د پاچاهی او جهانګیر حکومت په اړوند او درېمه ډله دې د شاه جهان او اورنګزیب د واکمنیو په هکله یو له بل سره خبرې وکړي او د مطلب لنډیز دې د ډلو د استازو لخوا نورو ته وړاندې شي.



### پوښتنې

۱- بابر څوک و او څه ډول یې په هندوستان کې بابري لړۍ رامنځته کړه؟

۲- د بابر حکومت په هند کې څو کاله دوام وکړ، او ولې د نوموړي مړی کابل ته راوړل شو؟

۳- د همایون په هکله څومره پوهېږئ او ولې یې ایران ته پناه یوړه؟

٤- همایون وروسته له څو کلونو، او څه ډول په هند کې د دویم ځل لپاره د هند واکمن شو؟

٥- جلال الدین اکبر، راجپوتو هندوانو ته څه خدمتونه ترسره کړي، په لنډه توګه یې روښانه کړئ.

٦- د طاووس تخت د کوم پاچا په زمانه کې جوړ شو؟ د پوښتنې سم ځواب په نښه کړئ

الف: جلال الدین اکبر ب: جهانګیر ج: شاه جهان



### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې په هند کې د بابري لړۍ مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ولیکي. ښوونکی دې په راتلونکي درسي ساعت کې د دوی کتابچې وګوري.





# د هند په بابري دوره کې علم، فرهنگ او هنر

په هند کې د بابریانو واکمني د علم، فرهنگ او هنر له پلوه د هغه هېواد یوه بډایه دوره گڼل کېږي. بابر او اکبر د دې دورې له مشهورو او با فرهنگ دوستو پاچاهانو څخه وو. په دې لوست کې به د بابریانو د علم، فرهنگ او هنر د وضعیت په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د بابریانو په زمانه کې علم، فرهنگ او هنر ته ډېره پاملرنه وشوه. په هغه وخت کې د هند مهمې سیمې د مسلمانانو په واک کې وې. دري د هغه هېواد رسمي ژبه شوه. بابر او اکبر دواړه د فرهنگ کلک مینه وال وو او پخپله بابر هم فارسي شعرونه ویلي دي. گلونه او باغونه یې خوښېدل. نوموړو د هند دربارته د دري ژبي شاعرانو په ورتهولولو سره، دري ادبیات پیاوړي کړل که څه هم اکبر پخپله سواد نه درلود. سره له دې یې هم له نوو علومو سره مینه لرله او هم به یې یوه ډله کتاب لوستونکي لرل چې نوموړي ته به یې کتابونه لوستل.

د اکبر پاچا په امر ډېر کتابونه له سانسکریټ څخه دري ژبې ته وژباړل شول. د نوموړي دا کار د دري ژبې د خپرېدو لامل وگرځېد، او د هند د غیر مسلمان او سېدونکو مینه هم له دري ژبې سره زیاته شوه.

د اسلام سپېڅلي دین ډېره موده مخکې هند ته لاره پیدا کړې وه، او بابریان په هندوانو کې د اسلام دین په نسبي خپرېدو بریالي شول، او په هېواد کې یې د قومونو او مذهبونو ترمنځ یووالی رامنځته کړ. د اکبر پاچا د گټورو اقداماتو له ډلې څخه د غیر انساني دود (ساتي) یعنې د مېړه له مړینې وروسته د مېرمنو له خوا د ځان سوځېدنه منعه کړه.

د معمارۍ هنر ته هم د بابر یانو په وخت کې ځانگړې پاملرنه وشوه او گڼ شمېر قوس لرونکي او گنبدي ودانۍ، د ښـه را غلاسـت د تالارونو په لرلو سره دود شوې، چې د ځانگړې اسلامي معمارۍ ښکارندوی وي. ډېر شمېر ښکلي باغونه، ودانۍ او ماڼۍ جوړې شوې، لکه د آگرې په ښارکې تاج محل، په فتح پور کې د اکبر ماڼۍ، په ډهلي کې د شاه جهان سره کلا،او د هندوستان

په نورو ښارونو کې ډېرې ودانۍ جوړې شوې، خو د هند گورکانيانو افغانستان ته ډېره پاملرنه نه کوله، نو ځکه زموږ په هېواد کې ارزښتناك او باعظمته آثار پاتې نه شول. سره له دې هم، ځينې آثار رامنځته شول، لکه د کندهار د سر پوزې په غره کې د چهل زينې اثر چې د بابر په امر جوړشو. ځينې باغونه يې په افغانستان کې جوړ کړل چې کولای شو د کندهار، استالف، کابل او د کابل شمالي او ختيځ لور د علم گنج بڼ، شهرآرا بڼ، دلکشا بڼ، د بابر چهار باغ، بگرامي بڼ، صفا بڼ او کوکب بڼ نومونه واخلو.

د انځورگرۍ په هنر کې له طبيعت څخه تقليد او له لرغونو هندي لاروچارو



## چې زيات و پوهېږئ

### تاج محل

تاج محل د نړۍ له ډېرو ښکلو ودانيو او همدارنگه د اسلامي معمارۍ ترټولو غوره، او نه هېرېدونکې نمونه ده چې د اگرې په ښار کې هغه وخت جوړ شوي دی چې په (۱٦۳۱م) کال کې د شاه جهان مېرمن(ممتاز محل) مړه شوه. شاه جهان امروکړ چې د گرانې مېرمنې د قبر پر سر يې داسې وداني جوړه شي. د دې ودانۍ د جوړولو لپاره يې د ډېرو غورو معمارانو غونډه را وبلل شوه، او د غونډې په پای کې د استاد عيسى شيرازي طرحه ومنل شوه.

د تاج محل ودانۍ د جوړولو کار (۲۲) کاله وخت ونيو، او په دې موده کې (۲۰۰۰۰) کارکوونکي په کې گمارل شوي وو. تاج محل په مرمرينو او قيمتی ډبرو ښکلی شوی دی او په سر يې پياز شکله گنبده موقعيت لري. د دې گنبدې لوړوالی(۲٤,٥) متره او قطر يې له (۱٥) مترو څخه زيات دی . د دې ودانۍ لاندې د ميرمن ممتاز محل قبر دی، او د دې قبر څنگ ته شاه جهان هم خښ شوی دی.

ښخه ګټه اخیستل.

د سلطان حسین بایقرا د دربار ترټولو غوره انځورګر استادکما ل الدین بهزاد هم په همدې وخت کې په هرات کې اوسېده. د هند مغولو د بڼونو او بوستانونو د منظرو په ترتیب او په دېوالونو د انځورونو او د هغو رنګولو په سبب د استاد بهزاد د میناتورۍ مینه وال شول. هغه یې په هند کې دود کړل او ان خپله اکبر پاچا په خپل دربار کې د انځورګرۍ کارخانه لرله چې له سلو زیاتو انځورګرانو پکې کار کاوه.

موسیقي هم له دیار لسمې پېړۍ ښخه وروسته په هندوستان کې وځلېده. له اورنګ زیب ښخه پرته د هند ټول مغولي واکمنان د موسیقۍ مینه وا ل وو. د فقیر الله په نامه د هند یو مسلمان په (۱۶۶۶م) کال کې د راګ درپن(Rag Darpan) په نامه یو کتاب تألیف او خپور کړ. له دې وروسته د موسیقۍ په برخه کې د مسلمانانو او هندوانو فرهنګي سبکونه سره ګډ شول. په دې دورې کې تر ټولو مشهور سندرغاړی تانسن (Toncean) نومېده. نوموړی د اکبر پاچا د دربار تر ټولو غوره سندرغاړی، او د هند د ټولو سندرغاړو د مخکښ په توګه پېژندل شوی و. د بابریانو په دوره کې زیاتره هغو خلکو چې په ښارونو کې یې ژوند کاوه د خوښیو شپو او ورځو(نوی کا ل او برات) او هغو جشنونو کې چې په لویو مذهبي قبرونو او زیارتونو کې جوړېدل ګډون یې کاه او د هغو مداریانو او جادو ګرانو په زړه پورې نندارتونونو او د ځارویو له لېدلو ښخه یې خوند اخیست. خو د نادر افشار له خوا د اتلسمې پېړۍ له نیمایي وروسته، یرغلونه د ډېرو وېجاړیو لامل وګرځېدل. د هند پلازمېنې زیاتره برخو هغه پخوانۍ ځلېدنه او دبدبه له لاسه ورکړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د بابریانو د علم او فرهنګ په هکله خبرې وکړي او دویمه ډله دې د هند د مغولو په دوره کې د هنر په هکله وغږېږي او پایلې دې د هرې ډلې د استازي له خوا په پرتلیزه توګه وړاندې شي.



## پوښتنې

۱- بابر او اکبر د علومو او دري ژبې لپاره کوم گامونه اوچت کړل؟ څرگند يې کړئ.

۲- د اکبر پاچا دگټورو اقداماتو له ډلې څخه يو هم د غير.................... دود له منځه وړل وو.

۳- استاد کمال الدين بهزاد څوک و؟

٤- د موسيقۍ په برخه کې د راگ درپن په نامه کتاب دکوم يوه لاندېني سړي له خوا ليکل شوی و؟

الف: فقير الله ب: استاد بهزاد ج: شاه جهان



### له ټولگي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې په هند کې د بابريانو د دورې د ارزښتناکو آثارو په هکله لږ تر لږه دوه مخه مطلب وليکي.

# چین په منځنیو پېړیو کې

په دې لوست کې به په منځنیو پېړیو کې د چین د یووالي او لویوالي په څرنګوالي او انګېزو، د بزګرانو د پاڅون په لاملونو او د هغو په پایلو، او همدا رنګه په چین کې د مغولو د واکمنۍ چې ډېرو وېجاړیو او بې شمېره خلکو د وژلو لامل شول، خبرې کوو.

## په منځنیو پېړیو کې د چین یووالی

له منځنیو پېړیو مخکې چین په یو لړ بېلا بېلو سیمو وېشل شوی و. د چین شمال د هغو یرغلګرو کډوالو د یرغلونو په واسطه لاندې شوی و، چې د لویدیځ او شمال له لوري یې پرې یرغلونه کړي وو. د چین سویل هم په دې وخت کې په خو سیمو وېشل شوی و. په دې توګه، په چین کې څوګونو پاچاهانو او پوځي سردارانو په خپلواکه توګه واک چلاوه چې تل به یو له بل سره په جګړو کې ښکیل وو.

**زیات وپوهېږئ**

چینایانو هیڅ وخت خپل هېواد چین نه باله، دوی معمولاً تر آسمان لاندې امپراتوري بلله او ځانونه به یې آسماني زامن بلل.

په (٦١٨م) کال کې د چین خاورې له سره یووالی وموند. دغه یووالی د یوه زړه ور او جګړه مار سردار چې کائوتسو (Kaiotso) نومېده را منځ ته شو، او د تانګ (Tong) په نامه یې امپراتوري جوړه کړه.

د تانګ کورنۍ امپراتورانو د خلکو په مرسته وکولای شول چې ټول سیمه ییز مشران، او پوځي سرداران تابع کړي، او پراخې سیمې تر واک لاندې راولي. د یو لړ بریالیو جګړو وروسته یې ګاونډي هېوادونه هم لاندې کړل، او چینایان هلته مېشت شول. په دې توګه د چین لوی هېواد رامنځته شو. د تانګ د امپراتورۍ په زمانه کې د چین خاوره له اوسني چین څخه هم پراخه وه. په هغه وخت کې د هند د شمال په شاهزاده ګانو، باندې د چین فرمان چلېده او دوی ته به یې خراج ورکاوه.

د تانګ امپراتورۍ شاوخوا (۲۸۸) کاله د چین په پراخه خاوره حکومت وکړ. په هغه وخت کې چین خپل ځواک، اقتصاد او فرهنګ لوړو پوړیو ته ورساوه. چینایانو د تانګ په لړۍ کې باروت اختراع کړل. د دې امپراتورۍ پلازمېنه د چانکان (Chankan) ښار و چې اوس سیان (Ceaion) نومېږي. دتانګ د امپراتورۍ په مهال چین د نړۍ یو له ډېرو ځواکمنو حکومتونو څخه ګڼل کېده، خو په نهمه زیږدیزه پېړۍ کې چین د بزګرو له یوه لوی پاڅون سره مخ شو.

## په نهمه زيږديزه پېړۍ کې د بزګرانو پاڅون

په بزګرانو باندې د فيوډالانو او د پراخو سيمو د خاوندانو له خوا درانه باجونه او بدې رويې د دې لامل وګرځېدلې، چې د تانګ امپراتورۍ په بېلا بېلو سيمو کې پاڅونونه رامنځته شي. يو له دې پاڅونونو څخه په (۸۷٤م) کال کې د هوانګ چائو(Hovangcho) په مشرۍ بزګري پاڅون و. چائو چې له جګړه ييزو چارو سره پوره بلد و. له بزګرو څخه يې ځو زره کسيز لښکر جوړ کړ. د دې لښکر شمېر هره ورځ زياتېده، او د امپراتورۍ لښکر د هغه سره د مقابلې توان له لاسه ورکاوه.

چائو چې د بزګرو د لښکرو په سرکې و، غوښتل يې چې له ټولو فيوډالانو او د چين له ايالتونو سره حساب پاک کړي، تر څو د بزګرو ژوند ښه او نابرابري له منځه لاړه شي.

هوانګ چائو او ملګري يې له يو لړ برياليو جګړو وروسته په (۸۸۱م) کا ل کې د تانګ امپراتورۍ ته ننوتل. امپراتور وتښتېده او له نوموړي سره يې ټول تړلي فيوډالان، دولتي کارکوونکي او پوځي مخور ووژل شول، او د دوی په ځای بزګران په لوړو ځوکيو وګمارل شول. د پلازمېنې شتمني ټوله د بې وزلو ترمنځ وويشل شوه.

چائو دوه نيم کاله پلازمېنه په واک کې لرله خو امپراتور، او فيوډالان له کډوالو ټبرونو سره ملګري شول او ځانونه يې(تور کارغان) وبلل. هغوی په (۸۸۳م) کـال کې د هوانګ چائو لښکرو ته ماته ورکړه. زياتره بزګران د امپراتور اجيران شول او د بزګرو پاڅون په سخته ماتې خوړلو سره له منځه لاړه، خو د تانګ امپراتورۍ نوره هغه پخوانۍ ځواکمنتيا او ځلا نه لرله. نوموړې امپراتورۍ په (۹٦۰م) کال کې خپل ځای د سونګ(sung) په نامه يوې بلې کورنۍ ته پرېښود.

## په چين کې د مغولو واکمني

په مغولستان کې د مغولو په پوځي ځواکمنتيا سره، چنګيز خان د دوی د مشر په توګه راښکاره شو. په لومړي سرکې يې د ګاونډيو هېوادونو لاندې کولوته پاملرنه وکړه چې په دې ډله کې چين هم و. په هغه وخت کې د سونګ د امپراتورۍ لړۍ په چين کې واکمنه وه. سره له دې چې د چنګيز خان په ژوند کې ټول چين فتح نه شو. خو د نوموړي زامن په (۱۲۳٤م) کـال کې وتوانېدل چې چين لاندې کړي.

مغولو په چين کې ډېرې وېجاړۍ رامنځته کړي. د بزګرانو کښتونه د مغولي ښارويو په څړځايونو بدل شول، ګڼ شمېر خلک له منځه لاړل. نوموړو په (۱۲۷۱م) کال کې د پېکېنګ(بي جينګ)

ښار د خپلې امپراتورۍ د پلازمېنې په توګه وټاکه، او تر څوارلسمې زېږدیزې پېړۍ پورې یې د چین په پراخه خاوره واکمني وکړه.

مغولو د چین زیار ایستونکي د ځان لپاره غلامان کړل.

چینایان له دولتي څوکیو او ادارو څخه وایستل شول.

دا کار د عامه وګړو د کرکې لامل وګرځیده، په ځانګړې توګه د چین زیار اېستونکي د مغولو پر ضد راپورته شو او په (۱۳۴۸م) کال کې یې د چویو آنګ چان (Chew ang Chon) په نامه دیوه بزګر په مشرۍ د چین په سویل کې د مغولو په وړاندې پاڅون پیل کړ. په دې پسې د بزګرو او عامه وګړو له خوا په ټول چین کې پاڅون

## چې زیات پوهېږئ

### مارکوپولو

مارکوپولو د نیکوپولو زوی په منځنیو پېړیو کې د اروپا تر ټولو مشهور ګرځندوی ګڼل کېږي. نوموړي د خپل پلار او تره سره د کوچنۍ آسیا، ایران او افغانستان (د ورېښمو له پخوانۍ لارې) نه چین ته سفر وکړ، مارکوپولو وتوانېده چې په چین کې د واکمنو مغولو دربار ته لاره پیدا کړي. ده شل کاله په چین کې تېر کړل. په دې موده کې د چنګېز خان د زوی (قبلالي خان ) له خوا د چین حکومت په لوړو څوکیو وګمارل شو، لکه د ګمرک اداره، سفارت او داسې نور. په پایله کې نوموړي د چین په ګډون د آسیایي هېوادونو له وضعې سره پوره بلدتیا تر لاسه کړه. کله چې چې په (۱۲۹۵م) کال کې خپل پلرني ټاټوبي (ونیز) ته وګرځېد. د خپلو خاطراتو په کتاب کې یې د ډېرو آسیایي هېوادونو او سیمو د فرهنګ ،تمدن او اقتصادي وضعې په هکله معلومات او خبرتیاوې اروپایانو ته ورسولې چې په نویو پېړیو کې هند او چین ته د ډېرو اروپایانو د کډوالۍ لامل وګرځیده.

پیل شو. د مغولو د اداري او پوځي مامورینو ډله ییزې وژنې ورسره ملګرې وې او ښارونه یو پر بل پسې د پاڅون کوونکو لاسته ورغلل. چان په (۱۳۶۸ م) کا ل کې د نانکېنګ ښار له نیولو وروسته د مېنګ (Ming) په نامه نوې امپراتوري په هغه ښار کې رامنځته کړه. نوموړي د چین د خلکو په مرسته د مغولو پلازمینه (پیکنګ) ونیوه او مغول یې تر مغولستان پورې په شاه وتمبول. په دې توګه په چین کې له سلو کلونو څخه زیاتې واکمنۍ وروسته مغولي امپراتوري ړنګه شوه او په بدل کې یې د مېنګ لویه امپراتورۍ واکمنه شوه، او د دې لړۍ واکمني څه د پاسه (۳۰۰) کاله اوږ ده شوه. په دې دورې کې د چین خلکو نسبت نورو دورو ته په هوسایني او آرامۍ کې ژوند کاوه.

## په ټولګي کې فعالیت



زده‌کوونکي دې په دروو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د چین د یووالي او تانګ امپراتورۍ د رامنځته کېدو په هکله، دویمه ډله دې د بزګرانو پاڅون او د هغوی د پایلو په هکله او دریمه ډله دې په چین کې د مغولو د واکمنی په هکله خبرې اترې وکړي. پایلې دې د هرې ډلې د استازو له خوا وړاندې شي.

## پوښتنې



۱- د چین وضعه مخکې د منځنیو پېړیو له پیل څخه څه ډول وه؟ معلومات ورکړئ.

۲- د چین یووالی څه وخت رامنځته شو او د تانګ د امپراتورۍ په اړه څومره پوهېږئ؟

٤- مغول څه ډول په چین واکمن شول؟ په دې اړه معلومات ورکړئ.

٥- په چین کې د مغولو حکومت څوکاله اوږد شو؟

الف: ٥٠ کاله ب: له سلو څخه زیات کلونه ج: درې پېړۍ.

## له ټولګي څخه د باندې فعالیت



زده‌کوونکي دې په راتلونکي درسي ساعت کې د مغولو او په چین کې د هغوی د برې په هکله یو مطلب ولیکي.

# چین په نویو پېړیو کې

په دې لوست کې به په نویو پېړیو کې د چین د سیاسي او ټولنیزې وضعې له څرنګوالي سره آشنا شئ.

د نویو پېړیو پیل په اصل کې له لیرې ختیځ (هندو چین) سره د اروپایانو د سوداګریزو اړیکو له پیل سره سمون خوري. پرتګالیان چې ماهوګان وو. وروسته له ډېرو هڅو وتوانېدل چې د لومړي ځل لپاره د افریقا وچې له غاړو څخه را تاو شي او په لومړي سرکې د هند په سویل لویدیځو غاړو کې پلي شول. نوموړي بیا وروسته په (۱۵۱۳م) کال کې د سوداګرۍ د پراختیا لپاره د چین سویلي سیمو ته راغلل، په هغه وخت کې چې د مېنګ لړۍ په چین کې واکمنه وه، د کانتون (conton) بندر یې د پرتګالیانو د سوداګرۍ لپاره خلاص کړ. چین ته د پرتګالیانو راتګ د دې لامل وګرځید؛ تر څو لومړی هالنډیان او وروسته انګریزان او فرانسویان هم له چین سره د سوداګرۍ په لټه کې شي. د اروپایانو زیاتره فعالیتونه په سویلي بندرونو کې په ځانګړې توګه د کانتون په بندر کې تر سره کېدل. او له هغه ځای څخه یې چای، ورېښم او چینی لوښي راوړل، له دې وروسته چین ته د اروپایانو تګ او راتګ له شمېر عیسوي مبلغینو سره زیات شو. په دې سفرونو کې، عیسوي مبلغین به له قیمتي ډالیو سره له اروپایانو سره تلل. د چین دولت هم دغو مسیحي مبلغینو ته د مسحیت د تبلیغ اجازه ورکړه.

په چین کې د مینګ د کورنۍ حکومت(۳۰۰) کاله دوام وکړ خو په (۱٦٤٤م) کا ل کې د همدې هېواد له شمال ختیځ لوري څخه د منچوریا د صحرایي ټبرونو له یرغلونو سره مخ شو. له یو لړ جګړو وروسته د مینګ امپراتوري ړنګه او دهغې پر ځای د منچو (Manchu) په نامه نوې امپراتوري رامنځته شوه چې پلازمېنه یې د پکېنګ (Peking) ښار و. په اصل کې دوی ځیرك او جګړه مار خلك وو. د منچو اشرافو په کلو کې د سختو جګړو په واسطه د بزګرانو زیاتې ځمکې لاسته راوړلې، او هغه یې په خپل خصوصي شتمنیو بدلولې، له بزګرو سره به یې د بې رحمۍ او زورزیاتي چلند کاوه. زیاترو چیني فیوډالانو به له دولت څخه ملاتړ کاوه، او دمنچویانو د فرمان سره سم یې په دولتي ادارو کې فعالیت کاوه. نوموړي د جګړو اسیران په خپلو شخصي غلامانو بدل کړل.

د منچو کورنۍ و توانېدله چې ټول چین تر خپلې واکمنۍ لاندې راولي، او شاو خوا دوې نیمې پېړۍ یې پر چین واکمني وکړه. نوموړو د مینګانو په څېر له اروپایانو سره خپلو سوداګریزو اړیکو ته دوام ورکړ. له چین سره سوداګري د اوریایانو په ګټه ختمه شوه، او تر دریو پېړیو یې دوام وکړ. اروپایي سوداګرو ارزښتناك غنیمتونه لاسته راوړل او د خلکو په وړاندې یې له هېڅ ډول فساد څخه ډډه ونه کړه. نوموړو به چېني سوداګر تېرایستل، د چین خلکو ته یې سپکاوی کاوه، او چیني مامورنیو ته به

يې رشوت ورکاوه. تر څو اروپايان د دوی د جنايت په وړاندې پلټنه ونکړي.
په دې توګه د اروپايانو سوداګري، د چين د خلکو د مالونو د چور او لوټولو لامل وګرځېده.
دغه وضعه د پرديو په تېره د انګريزانو په وړاندې د چين د خلکو د کرکې او نفرت لامل وګرځېده؛ څکه انګرېزانو د نورو اروپايي هېوادونو په پرتله له چين څخه ډېره ګټه ترلاسه کړې وه. په پای کې د چين دولت له اروپايي هېوادونو سره خپله سوداګري لنډه کړه او په (۱۷۵۷م) کال کې د کانتون بندر په ګډون د چين ټولو ښارونو ته د اروپايانو تګ راتګ منع شو او د نوموړو سوداګري او مذهبي فعاليتونه چينايانو تر څارنې لاندې ونيول. په دې توګه د چين دولت خپلې دروازې د بهرنيانو پرمخ وتړلې او څوکاله يې د اروپايانو د تګ او راتګ مخه ونيوله. سره له دې هم اروپايان وتوانېدل چې د درو پېړيو لپاره خپلې سوداګريزې اړيکې له چين سره ټينګې کړي. په دې موده کې انګرېزان له چين څخه د ګټې اخيستنې په برخه کې تر ټولو زيات بريالي وو، او په پايله کې يې چين د ترياکو لګښت ته اړ کړ چې د انګرېزانو له خوا به د قاچاق په توګه لېږدول کېدل.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په دې هکله خبرې وکړي چې اروپايان له کومې لارې څخه چين ته راغلل، او څه ډول يې د چين له حکومت سره خپلې سوداګريزې اړيکې ټينګې کړې؟ او دويمه ډله دې په چين کې د منچو کورنۍ په بريالیتوب او له اروپايانو سره د دوی د اړيکو په هکله خبرې وکړي. پايلې دې د ډلو استازي ټولګي ته وړاندې کړي.

### پوښتنې



۱- د مينګ د کورنۍ حکومت د چا په واسطه رنګ شو؟

الف: د منچو صحرايي ټبرونو　　ب: اروپايانو　　ج: هيڅ يو

۲- په کلو کې له بزګرانو سره د منچو اشرافو چلند څه ډول وه؟

۳- د چين حکومت ولې کانتون بندرته د اروپايانو تګ او راتګ بند کړ؟

د لاندې جملې تش ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي

٤-له چين سره سوداګري د ............ په ګټه ختمه او شاوخوا.............. دوام وکړ.

# د چین اقتصادي، فرهنګي او هنري وضع

## الف: اقتصادي وضع

په منځنیو پیړیو کې د چین هېواد له اقتصادي پلوه ستر بریالیتوبونه تر لاسه کړل. نوي نهرونه، بې شمیره بندونه او د کښت فن پر مخ تللو و سایلو په واسطه تر سره شو. د کانونو لکه د اوسپنو، مسو، سرو او سپینو زرو رایستل پراختیا وموندله. نوي ښارونه د ښکلو ماڼیو او معبدونو په لرلو سره جوړ شول او سوداګري ډېره زیاته وغوړېده. د چانګان(changan) ښار چې د تانګ امپراتورۍ پلازمېنه وه له یو میلیون څخه یې زیات اوسېدونکي لرل. دغه ښار په هغه وخت کې د لویو سوداګریزو مرکزونو څخه ګڼل کېده.

چینایانو له ګاونډیو او د منځنۍ آسیا له هېوادونو سره پراخه سوداګري پیل کړه. او چینایان ډېر ژر پدې وتوانیدل چې د چاي تولید ډېر او هغه ډېرو هېوادونو لکه هندوستان ته ولېږدوي. همدارنګه عربو هم چې د سوداګرۍ کسب درلود د کانتون په بندر کې یې د سوداګرۍ ځانګې پرانیستلې، او له چینایانو سره یې په پراخه سوداګرۍ لاس پورې کړ. له نورو هېوادونو سره د چینایانو اړیکې، د چینایانو په فرهنګ باندې ډېره زیاته اغېزه وکړه.

## ب : فرهنګي وضع

په منځنیو پیړیو کې چینایان ډېر فرهنګي خلک ګڼل کېدل. د چین ادبیات د سلګونو کلونو په اندازه له اروپا څخه مخکې وو. په چین کې کاغذ د نړۍ له نورو هېوادونو څخه د مخه کشف شو. او د چاپ صنعت ډېره موده مخکې منځته راغلې و. په اتمه هجري پیړۍ کې د تانګ امپراتورۍ په فرمان د (پلازمېنې پیغام) په نامه تر ټولو لرغونې ورځپاڼه خپرېدله. چې په هغه کې به د امپراتور فرمان او د هېواد مهم سیاسي خبرونه خپرېدل. د غې ورځپاڼې له زرو کلونو څخه زیات دوام وکړ.

چینایانو له پخوا څخه باروت او قطب نما اختراع کړي وو. نوموړو له ستورو پېژندنې او کلیزې سره پوره بلدتیا لرله، د لمر کسوف په هکله به یې وړاندوینې کولای شوې. د تانګ او سونګ د امپراتوریو په زمانو کې علومو او فنونو لکه ریاضیاتو، جغرافیې او د کښت چارو ته ځانګړې پاملرنه وشوه. تاریخ لیکونکو او فیلسوفانو ته په چین کې په ډېره درنه سترګه کتل کېدل. د دې دورې تر ټولو مشهور شاعران لی پو او توفو (Lepo-Tofou) وو. په ښارونو کې لوی کتابتونونه او ښکلي پوهنتونونه جوړ شول چې په هغې کې په ځانګړې توګه تاریخ، فلسفه او ادبیات تدریس کېدل.

## ج: هنري وضع

د ټانګ د امپراتورۍ پر مهال په چین کې تیاتر او موسیقي په نوي ډول سره دود شول. حتی امپراتور





هم په خپل دربار کې د هنر زده کولو ښوونځی جوړ کړ. تیاتر له پخوا څخه د چین د خلکو د علاقې وړ ساعت تېری ګڼل کېده، چې تر اوسه هم په چین کې دود دی.
د سونګ د امپراتورۍ په دورې کې انځورګري هم د پام وړ وګرځېده. چینایانو به خپل انځورونه زیاتره په وریښمینو ټوټو او د معبدونو او ماڼیو په دېوالونو انځورول. حجاري او مجسمه جوړول هم له پخوا څخه په چین کې پراختیا موندلې وه. د خدایانو، امپراتورانو او د ژوو هیکلونه او زیاتره لوېې ودانۍ او مجسمې به یې جوړولې. معمارۍ د امپراتورانو او فیوډالانو د ځانګړې پاملرنې له کبله وغوړېده.
چیني معمارانو به د استوګنې کورونه ، پلونه او ښکلې ماڼۍ ګانې له مرمرینو ډبرو څخه جوړولې، او وروسته به یې د لوښو په چیني موادو، سروزرو کیندلو سره په هنري توګه ښکلا ورکوله. هغه اروپایان چې په چین کې اوسېدل د نوموړو ودانیو لویوالي او ښکلا هک پک کړي وو.
هنر د شتمنو خلکو ورځني ژوند ته ژوره لاره پیدا کړې وه، او نژدې د دوی ټولې ګټې هنري شیان او هنري پیداوار ګڼل کېدل، او همدا رنګه چیني لوښي جوړول هم د چین د خلکو له ویاړو نو څخه ګڼل کېږي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په درو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د چین د اقتصادي وضعې په هکله، دویمه ډله دې د چین فرهنګي وضعې ا و دریمه ډله دې د چین د هنري وضعې په هکله بحث وکړي، پایله دې د ډلو د استازو له خوا په پرتلیزه توګه نورو ته وړاندې شي.



## پوښتنې

۱- ستاسو په اند، د چین سوداګریزې اړیکې له ګاونډیو او منځنۍ آسیا هېوادونو سره څه ډول وې؟
۲- د (پلازمېنې پیغام) ورځپاڼې او د چین مشهورو شاعرانو په هکله معلومات ورکړئ.
۳- د موسیقۍ او تیاتر په هکله چې څومره پوهېږئ خپل معلومات نورو ته وړاندې کړئ.
د لاندې جملې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډکې کړئ.
٤ -معماري د........... او فیوډالانو د ځانګړې پاملرنې پواسطه ............ پراختیا ومونده.



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د لوست مهم ټکي په خپلوکتابچوکې ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې ښوونکي ته د کتنې لپاره وړاندې کړي.

# شپږم څپرکی

## اروپا او امریکا په منځنیو او نویو پیړیو کې

په دې څپرکي کې هڅه کېږي چې په ډېره لنډه توګه په منځنیو اونویو پیړیو کې د اروپا او امریکا وضعیت تر څېړنې لاندې ونیول شي.



# د څپرکي موخې

هیله ده چې زده‌کوونکي ددې څپرکي په پای کې لاندې پایلې ترلاسه کړي:

- په منځنیو اونویو پیړیو کې د اروپا او امریکا له سیاسي او اقتصادي وضعې سره آشناشي.
- په صلیبي جګړو وپوهیږي او د هغو په پایلو او لاملونو یې وپوهیږي.
- د رنسانس په مفهوم وپوهیږي.
- په منځنیو پیړیو کې د امریکا له بومي فرهنګ سره بلد شي.
- د امریکا د کشف په هکله معلومات ترلاسه کړي.
- د امریکا د ودې او پرمختګ په لاملونو وپوهیږي.
- د صلیبي جګړو لاملونه او پایلې وکولای شي وپیژني.
- په دې پېر کې د اروپا د علم، هنر او فرهنګ د پرمختګ لاملونه په ګوته کړای شي.
- د متحده ایالاتو د ودې او پرمختګ لاملونه وپیژني او لړلیک یې کړي.
- د نقشو او اطلسونو څخه کار واخېستلای شي.
- د ودې او پرمختګ مینه وال شي او ځان د نړۍ یوه برخه وګڼي.

# اروپا په منځنيو پېړيو کې

په دې لوست کې به په منځنيو پيړيو کې د اروپا د سياسي او ټولنيزې وضعې له څرنګوالي سره په لنډه توګه بلدشئ.

آيا د منځنيو پيړيو له اصطلاح سره کله مخ شوي ياست؟ يا مو اورېدلي چې داکار يا هغه طرز فکر د منځنيو پيړيو د وخت دی؟ دا وينا هغه وخت کارول کېږي چې يو کار په زړه طريقه تر سره شي يا يو انددود د ننني پوهې پر بنسټ ولاړ نه وي.

يو وخت په اروپا کې ښاري ژوند دود نه و. د علم او پوهې زده کړې ته خلکو ښه راغلاست نه وايه. دغه شرايط د اروپا د تاريخ له يوې دورې سره تړاو لري.

مؤرخينو د لوېديځ روم له پرځېدو (٤٧٦ م) څخه د ختيځ روم تر را پرځېدو (١٤٥٣م) پورې واټن، منځنۍ پېړۍ ونومولې. مذهب اوکليسا واکمني او د فيوډالېزم نظم د اروپا د تاريخ د دې دورې له ځانګړتياوو څخه ګڼل کېږي.

له لرغونو پیړیو څخه وروسته د منځنیو پیړیو دوره را منځته شوه چې د اروپا د تاریخ زر کاله (۵۰۰-۱۵۰۰)رانغاړي.له منځنیو پیړیو څخه وروسته نوې پېړۍ رامنځته شوې.
په دې لوست کې به د اروپا د تاریخ د منځنیو پیړیو چې په لومړۍ نیمایي (۵۰۰-۱۰۰۰م)په حدود کې پیل شوې خبرې وکړو.

## په منځنیو پېړیو کې د اروپا مهمو ټولنیزو حالتونو ته لنډه کتنه

د یرغلګرو قومونو په واسطه په (۴۷۶م) کال کې د لوېدیځ روم له نسکورېدو او د روم ښار له نیولو وروسته د منځنیو پېړیو پېر پېل شوه. د ژرمن، مجار، فرانک او په همدې توګه د ځینو نورو قومونو، د څو پېړیو یرغلونو په ترڅ کې چې تقریباً ټوله اروپا یې ونیوله او وروسته تر دې چې د ډېرو خلکو ژوند یې خراب کړ نو کلو او کلاګانو ته یې مخه کړه. د دې یرغلونو په پایله کې ډېرې تمدني لاسته راوړنې لکه ښاري ژوند، سوداګري او د پوهې او زده کړې مرکزونه له خاورو سره برابر شول. ترهغې چې وروسته له ډېرو پېړیو یعنې د منځنیو پېړیو په پای کې یوځل بیا په اروپا کې ښاري ژوند، سوداګري او د زده کړې مرکزونه وځلېدل چې په راتلونکو لوستونو کې به یې ولولو.
په منځنیو پېړیو کې په اروپا کې فیوډالي نظام واکمن و، هر فیوډال یعني ارباب د ډېرو املاکو لرونکی و. چې ځینې وخت به یې یو لوی ولایت په واک کې و. په دې لویو املاکو کې به کرنیزې ځمکې، د ښکارځایونه، ځنګلونه، چینې، واړه سیندونه او کلي شامل وو. چې په دې توګه دخپلو اړتیا وو د پوره کولو لپاره په ځان بسیا وو. هغو خلکو به چې د فیوډال د سیمې په حدودو کې ژوند کاوه، رعیت به بلل کېدل. په همدې دلیل به فیوډالي نظام ته ارباب رعیتي نظام هم ویل کېده.
رعیت به په پوره ډول د ارباب تابع و او ارباب به د خپلې واکمنۍ اداري او قضایي چارې هم په غاړه لرلې. په منځنیو پېړیو کې د اروپایانو مهمه دنده کرنه ګڼل کېده ارباب به د حاصلاتو زیاته برخه ترلاسه کوله، او لږه برخه به یې رعیت ته ورکوله، او رعیت به اړ و چې د کال په اوږدو کې په دې لږو حاصلاتو ګوزاره وکړي.
د منځنیو پېړیو اشراف یا فیوډالان په اصل کې د هغو جګړه ییزو ډلو مشران وو، چې له جګړو وروسته د اروپا په بېلابېلو سیمو کې به له مېشت کېدو سره د ځمکو خاوندان کېدل. خپل جګړه ماران او د هرې سیمې بومي اوسیدونکي یې د خپل رعیت په ډله کې راوستل. د فیوډالانو ترټولو مهمه دنده دا وه چې د خپلو شتمنیو نظم او امنیت ټینګ، او په جګړې کې برخه واخلي. د همدې موخې لپاره هر فیوډال ډېره لویه او کلکه کلا درلوده. چې د جګړې په وخت کې به یې د ځان او

رعیت ساتنه پکې کوله. هر فیوډال به جګړه ماران هم لرل، چې د اړتیا په وخت کې به د دښمن سره پرې جنګېده. ارباب به له خپل رعیت څخه دفاع خپله دنده ګڼله، چې په بدل کې به رعیت هم له نوموړي څخه په پوره ډول متابعت کولو.
فیوډال یا ارباب چې په خپله سیمه کې به خپلواک و خو بیا هم د لوی فیـوډال متابعت به یې کاوه او پاچا به د فیوډالانو له خوا ټاکل کېده. فیوډالانو به پاچا ته د وفادارۍ ښودلو لپاره لوړه کوله. څه وخت به چې له بهرنیو دښمنو سره جګړه ونښته، فیوډالان به له خپلو سر تېرو سره د پاچا مرستې ته ورتلل.
په منځنیو پېړیو کې د اروپا د فیوډالانو خپلمنځۍ جګړې له بهرنیانو سره د جګړو په پرتله زیاتې وې. له همدې کبله پاچاهان په زیاتره د زیات واک خاوندان نه وو. او یوازې د منځنیو پېړیو په وروستیو کې ورو ورو د پاچاهانو واک زیات شو او فیوډالان یې د ځان فرمان منونکي وګرځول.
د منځنیو پېړیو په پېر کې د ټولنې ترټولو مشهوره ډله شوالیان (سپاره نجیب زاده ګان) بلل کېدل چې په ټول ژوند کې به په جګړو، د جګړو د فنونو په زده کړو، د وسلې په کارولو، د ځوانمردۍ او وفادارۍ په رعایت بوخت وو اود زده کړې اوشتمنۍ سره یې مینه نه درلوده.
د شوالیانو تر لاس لاندې رعیت اوسېده. چې په کروندو کې به یې کار کاوه، او په غرونو کې به اوسېدل. او حاصل به یې چې لاسته راوړه، ده ته به هم برخه رسېده او د کروندې پرېښودلو حق یې نه درلود. دې ډلې ته به سرف یعنې په ځمکو پورې تړلې خلک ویل کېدل. همدغه شرایط به له پلار نه زوی ته په میراث پاتې کېدل. خو ځینې داسې بې مشره رعیت هم وو چې دکار د موندلو په موخه به له یو ځای نه بل ځای ته لېږدېدل او د کار په بدل کې به دوي ته دحاصلاتو یوه برخه ورکول کېده.



د فیوډالي ټولنې د مرتبو لړۍ

د منځنیو پېړیو په دوران کې هر څوك به چې د وړوکتوب له دورې را تېر شو نو که په اشرافو یا فیوډالانو پورې به یې تړاو درلود، نو جنګیالی به شو او که د رعیت په مشر پورې به تړلی و په کرونده کې به په کار بوختېده. ښوونځی او زده کړه موجوده وه. یوازې هغو کسانو به چې غوښتل کشیشان شي د ځوانی له پیل څخه به کلیسا ته تلل، او په هغه ځای کې به یې دیني علوم لوستل.

## کلیسا



د کلیسا د مرتبولړۍ

د فیوډالي واکمنۍ لاندې سیمو کې څو کلیساوې موجودې وې. چې د کشیشانو په واسطې به اداره کېدلې. کشیشانو به د خپل ژوند یوه برخه له ټولنې څخه جلا په یوه ځای کې د درس په لوستلو تېروله. چې دا ځای به یې (دېر) او نوموړی کس به یې راهب باله. د دوی په درسونو کې به لاتیني ژبه، فلسفه، منطق، ریاضیات او نجوم شامل وو خو ساینسي علومو ته یې پاملرنه نه کوله.

ډیري کشیشان به د درسونو له ختمولو وروسته کلیسا ته تلل او ځینې دندې به یې هلته ترسره کولې، لکه: د تعمید غسل (مسیحیانو به د مراسمو په وخت کې خپلو ماشومانو ته غسل ورکولو) د دعا او عادت مراسم، او د واده مراسم. کشیشانو به له لوړ پوړی کشیش چې اسقف به بلل کېده، اطاعت کاوه، اسقفانو به بیا تر ټولو لوړ پوړي اسقف چې سراسقف به بلل کېده، اطاعت کاوه. سراسقف به د ټول هېواد کلیسا ګانې څارلې. سراسقف به د مسیحیانو د لوړپوړي مقام (پاپ) له خوا په دنده ګمارل کېده.

پاپ چې د ټولو مسیحیانو مخکښ و، د اروپا ټولې کلسیاوې یې ترلاس لاندې وې نو په همدې دلیل د دوی مقام له اروپایي پاچاهانو څخه لوړ وو. پاپ د روم په ښار یعنې د لرغوني روم د امپراتورۍ په پلازمېنه کې استوګنه درلوده د لوېدیځ روم له منځه تلو څخه وروسته په ایټالیا کې حکومت نه و موجود. نوله همدې کبله د روم ښار او شنډې یې د پاپ تر ولکې لاندې سیمې ګڼل کېدې.

## د منځنیو پېړیو په لومړۍ نیمایي کې د اروپا مهم سیاسي حالات

د روم د امپراتورۍ د له منځه تلو څخه وروسته او د منځنیو پېړیو په پیل کې اروپا له ډېرو ستونزو سره لاس او ګرېوان وه، د اروپا په سویل ختیځ یعنې د بالکان په شبه جزیرې کې د ختیځ روم (بیزانس) خلکو پیاوړي حکومت جوړ کړی و او د خپلې واکمنۍ د پراختیا او د لرغوني روم د بیا رامنځته

کېدو په سوچ کې وو. خو د بيزانس جګړو له ساسانيانو او وروسته بيا له مسلمانانو سره د دوی واکمني کمزورې کړه.
د بيزانس په لاندې کولو برسېره د اروپا په پاتې خاورې هم د هغو يرغلګرو قومونو له خوا حملې کيدلې چې لرغوني روم يې له منځه وړی و دغو يرغلونو تر هغه وخته دوام درلوده چې ترڅو يې اوسېدونکي مسيحي شول. يو له هغو قومونو څخه چې مسيحي شوي وو. فرانک نوميده دوی د اروپا په لوېديځ کې يې لويه واکمني رامنځته کړه چې د فرانک په پاچاهۍ مشهوره شوه. په نهمه زيږديزې پېړۍ کې د شارلمان په نامه د فرانک يوه پاچا د يوې پياوړې واکمنۍ بنسټ کېښود. نوموړی وتوانېده چې له پاپ سره يوځای په اروپا کې د مسحيت لمنه وغوړوي، او همدارنګه له هغو مسلمانانو سره يې هم جګړه وکړه چې د اسپانيې له لارې اروپا ته ننوتي وو. شارلمان يو پياوړی پاچا و چې هم فرانسويانو او هم المانيانو نوموړی د خپل پاچا په توګه منلی و.
له شارلمان څخه وروسته د هغه د واکمنۍ سيمه تجزيه شوه. په پايله کې يو ځل بيا بېلابېلو قومونو د شمال او ختيځ له لورو په اروپا باندې يرغلونه پيل کړل. چې په يوې برخې کې اوسنی فرانسه او په بلې برخې کې د روم مقدسه امپراتوري رامنځ ته شوه چې ځان يې د لرغوني روم امپراتوري وارث ګانه.
د شارلماني له واکمنۍ څخه وروسته دولتونه کمزوري وو، چې په پايله کې يو ځل بيا د بېلا بېلو قومونو يرغل د شمال او ختيځ له لوري په اروپا پيل شول د اروپا په ختيځ کې روسان او مجاريان ميشت شول، د انګل او ساکسون قومونو د انګلستان د حکومت او ملت بنسټ کېښود. په همدې توګه فينانو د فنلاند د خاورې او دانيانو د دنمارک هېواد رامنځه کړي دي دغو بدلونونو او پېښو څه د پاسه زر کاله وخت ونيوه . له دې وروسته د څو پيړيو په ترڅ کې د بدلونونو په پايله کې د اروپا اوسني هېوادونه رامنځ ته شول. په هغه وخت کې يرغلونه او د سيمو لاندې کول، او وروسته د فيوډالي حکومتونو او مسيحيت قبولول د دې ملتونو د رامنځ کيدو اصلي بنسټ ګڼل کيده.
وروسته له دې اداب او دودونه، ژبه او ليک او همدرانګه تاريخ هم پدې ور زيات شول. که چيرې په منځنيو پېړيو کې د ډېرو اروپايي هېوادونو د رامنځته کېدو تاريخي رېښې وڅېړو. د صليب نښه چې د زياتره اروپايي هېوادونو پر بيرغ لګول شوې، د هماغه وخت نښه ده.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په څلورو ډلو وویشل شي او وروسته له مشورې دې، له هرې ډلې څخه یو غړی د مطلب لنډیز نوروته وړاندې کړي.

۱- فیوډالیزم یعنې څه؟

۲- د کلیسا د مراتبو لړی؟

۳- د فیوډالیزم د مراتبو لړی؟

٤- منځنۍ پېړۍ یعنې څه؟

## پوښتنې



۱- په اروپا کې فیوډالانو کوم واکونه لرل؟ لنډېې تشریح کړئ.

۲- شوالیه او سرف یو تر بله څه توپیر لري؟ لنډېې تشریح کړئ.

۳- د اروپا پوهه او زده کړه له مسلمانې ټولنې سره په لنډه توګه پرتله کړئ.



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

د هغو قومونو دمنشا په هکله یو لنډ مطلب ولیکئ چې په منځنیو پېړیو کې اروپا ته راغلل.

# صلیبي جګړې

صلیب د مسحیت ترټولو لویه نښه ده. د مسیحیانو په اند دغه نښه د صلیب په واسطه د حضرت عیسی علیه السلام د شهادت یادونه ده. مسیحیان له صلیب څخه د بیرغونو او کلیساګانو د ښکلي کولو لپاره ګټه اخلي. د بېلګې په توګه د منځنیو پېړیو مسیحي لښکر چې د بیت المقدس لپاره یې له اروپا څخه په شام او فلسطین یرغل وکړ، په خپلو جامویې د صلیب انځور ایستلي وو. په همدې دلیل دوی ته صلیبیان ویل کیږي او د مسلمانانو او اروپایي مسیحیانو ترمنځ(۲۰۰) کلنې جګړو ته صلیبي جګړې وویل شوې. که څه هم د دې جګړو انګیزه مذهبي وه خو په هیڅ ډول د اروپا د سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو شرایطو په شتون سترګې نه شو پټولی. صلیبي جګړې چې د منځنیو پېړیو په دویمه نیمایي(له ۱۰۹۹ نه تر ۱۲۹۱م) کې رامنځته شوې، ډیرې سترې تاریخي پېښې بلل کیږي چې په لنډه توګه به خبرې پرې وکړو.



د صلیبي جګړې یوه صحنه

## د صلیبي جګړو پیل

له لومړۍ هجري پیړۍ څخه چې د اوومې میلادي پېړۍ سره سمون خوري، اسلامي نړۍ او مسحیت د یوه بل په وړاندې سنګر ونیوه. په لومړۍ هجری پېړۍ کې مسلمانانو له مسحیانو څخه د شام ځنډې، فلسطین، د افریقا شمال او هسپانیه ونیولې، او وروسته هم د دوی او مسیحیانو ترمنځ د

منځنۍ آسیا( ترکیې، مدیترانې ایټالیا او هسپانیې په سیندونو، او وچو کې جګړو دوام درلود. د منځنیو پېړیو په لومړیو کې د اسلامي نړۍ او مسیحیانو ترمنځ د شخړو او تاوتریخوالي نور لاملونه هم منځ ته راغلل چې لنډه یادونه ترې کوو.

## ۱. حضرت عیسی علیه السلام ته انتظار

: یوه ډله مسیحیان په دې باور وو چې  وروسته له زر کلو نو به یو ځل بیا حضرت علیه السلام په بیت المقدس کې راښکاره کیږي له همدې امله، مسیحي زائران په ځانګړې توګه راهبان به هغه ښار ته راتلل، او ورځ په ورځ یې شمېر په بیت المقدس کې زیاتېده. البته، هغه څه پېښ نه شول چې مسیحیانو یې انتظارایست. خودې سفرونو یوه ښه پایله لرله چې اروپایان یې د مسلمانانو د ژوند له اقتصادي او ټولنیزو شرایطو څخه خبر کړل.

## ۲. د وګړو ګڼوالی او په اروپا کې د ټولنیزو ستونزو را برسېره کیدل

په اروپا باندې د څو پېړیو یرغلونو او د کډوالو قومونو ورتګ، د دې وچې اوسیدونکي ډېر ګڼ کړل. دې کډوالیو د کرنیزو ځمکو د کموالي ستونزه هم په ځنګ کې لرله.
د ځمکو کموالی د بیوزلۍ سبب ګرځیده او ورو ورو ځمکوال رعیتونه کم او بې ځمکې رعیتونه زیاتیدل. دغه ستونزه، یوازې په رعیت پورې اړه نه لرله، بلکې شوالیه هم ورځ په ورځ تر بلې زیاتېدل؛ ځکه د اروپا په فیوډالي نظام کې دود داسې و چې د فیوډال شتمني به  مشر زوی تر لاسه کوله. له دې امله د فیوډال نور زامن اړ ووچې له شوالیه سره یو ځای شي. د شوالیه د شمېر زیاتوالي او د دوی شر غوښتنو په اروپا کې د نا امنیو لمنه پراخه کوله.
د همدې لاملونو له مخې فیوډالان او پاچاهان د نویو ځمکو په لټه کې وو. له دې امله چې د اروپا وچه نسبستاً کوچنۍ او له دریو خواوو بحرترې را تاو و، د هېوادونو د لاندې کولو امکان لږ و، نو ځکه یې د مدیترانې ختیځ لوري (شام او فلسطین) ته چې د مسلمانانو په ولکه کې وو پاملرنه وکړه.

## ۳. په اندلس (هسپانیه) کې د مسلمانانو پرمختک

د لومړۍ پېړۍ په وروستیو کې اندلس د مسلمانانو تر ولکې لاندې شو. دوی له پېړیو را پدې خوا د هغې سیمې له مسیحیانو سره په سوله کې ژوند کاوه. خو د فرانکانو په پیر کې اروپایي مسیحیانو د

اندلس په بېرته نیولو ټینګار کاوه. اندلس سره له دې چې له پاتې اسلامي نړۍ سره یې لرې اړیکې لرلې خو بیا هم نه یوازې د دوی د فشار په وړاندې ودریدل، بلکې مسلمانانو یې یو روښانه تمدن هم رامنځته کړ. خو د خپلمنځیو جګړو له امله، مسلمانانو ته ډېر تاوانونه ورواوښتل او د هسپانیا شمالي ځنډې یې له لاسه ووتې.

په همدې وخت کې سلجوقیانو په (۱۰۷۱م) کال کې پر شرقي روم(بیزانس) د بریښنا په څېر بریالیتوب تر لاسه کړ، او د بیزانس امپراتورۍ د کوچنۍ آسیا برخه له لاسه ورکړه. د مسلمانانو پر ضد یې له پاپ څخه د مرستې غوښتنه وکړه، او دا د پاپ لپاره غوره وخت و چې د بیزانس کلیسا چې د روم له کلیسا څخه په (۱۰۵۵م) کال کې جلا شوې وه، یو ځل بیا د خپل امرلاندې راولي. په پایله کې د بیزانس کلیسا چې په ځان یې ارتودوکس نوم ایښی و او د روم کلیسا کاتولیک نومیده. چې په دې توګه صلیبي جګړې پیل شوې.

## لومړنۍ صلیبي جګړې څه ډول پیل شوې؟

پاپ دویم اوربان په (۱۰۹۶م) کال کې د بیت المقدس د نیولو لپاره د مسلمانانو په وړاندې د جګړې امر ورکړ. ګڼ شمېر خلک د اروپا له مرکزي او لویدیځو سیمو څخه د بیزانس په لور وخوځېدل تر څو له هغې لارې ځانونه بیت المقدس ته ورسوي. دغه خلک چې زیاتره شوالیه او کلیوالي خلک وو، د یوه بې نظمه او بې سره لښکر په توګه یې د لارې پر سر ډېرې سیمې چور کړې. څه وخت چې قسطنطنیې ته ورسیدل نو د بیزانس امپراتوري د دې سرکښه او وږي لښکر څخه وویریدل، او نوموړو ته یې د مسلمانانو د پولو په لور لاربښوونه وکړه. که څه هم زیاتره صلیبیان یا په دښتوکې ورک، او یا له لوږې څخه مړه شول، خوپاتې بیا د مدیترانې له ختیځو ځنډو څخه ځانونه شام او فلسطین ته ورسول او په (۱۰۹۹م) کال کې د بیت المقدس په لاندې کولو وتوانیدل چې د صلیبي جګړو په پیل کې اسلامي نړۍ په خپلمنځي جګړو کې ښکیل کړې. فلسطین د مصر د فاطمیانو په لاس د کمزورۍ او د له منځه تلو په حالت کې، شام د عباسی خلافت د ملاتړو سلجوقیانو په لاس کې و. خو نه سلجوقیان سره متحد وو او نه عباسیانو خپلو پولوته پاملرنه کوله. له بله پلوه فاطمیانو او عباسیان هم په خپلو منځو کې سره دښمن وو. له دې امله د شام، فلسطین او بیت المقدس زیاتې برخې د صلیبیانو لاسته ورغلې.

په دې توګه صليبي لومړۍ جګړه د صليبيانو په ګټه ختمه شوه. د دې پيښې خپرېدل مسلمانانو ته سخت ټکان ورکړ. نو ځکه د زنګيانو په نامه چې د شام په پولو کې يې حکومت کاوه، د صليبيانو په وړاندې جګړې ته راووتل او د مسلمانانو ځينې سيمې يې بېرته ترې ونيولې. د صليبيانو ماته د دې لامل وګرځيده. چې نور تازه دمه يا نوي اروپايان د بيت المقدس په لور وخوځيږي. خو په دې جګړه کې فيوډالان هم له شواليه وو سره ملګري شوي وو. صليبيانو ماتې وخوړه، ځکه چې مسلمانان چمتو شوي وو او له بله پلوه د لومړۍ صليبي جګړې فاتحان د نويو کډوالو په راتګ خواشيني وو.

د صليبيانو په دويمې جګړې کې پاپ ماته وخوړه او دې ته اړ شو چې اروپايي پاچاهان هم د مسلمانانو پرورړاندې جګړې ته وهڅوي. په پايله کې د انګلستان، فرانسې او المان(د روم مقدسې امپراتورۍ) پاچاهان د فلسطين په لور وخوځېدل او دريمه صليبي جګړه رامنځته شوه.

همدغه جګړه وه چې د صلاح الدين ايوبي په نامه يوه مسلمان مشر سخت مقاومت وکړ. صلاح الدين چې د زنګي او فاطميانو د حکومت له نسکورېدو سره يې په مصر او شام کې د ايوبيانو په نامه حکومت را منځته کړ، وتوانېد چې بيت المقدس بېرته ونيسي، او د شام او فلسطين زياتې برخې آزادې کړي. يوازې ساحلي سيمې د صليبيانو په واک کې وې. د اروپا د مسيحي شاهانو لپاره د دې ماتو زغمل ډېر سخت وو، نو ځکه يې د نويو لښکرو تياری ونيوه.

## نورې صليبي جګړې

څلورمې صليبي جګړې کې د ډېرو سرتېرو او زياتو تجهيزاتو ته په درلودو صليبيانو په بيت المقدس کې برى او د ډېرو غنيمتونو تر لاسه کول حتمي ګڼل. خو کله چې د مسيحيت تر ټولو لوى ښار قسطنطنيې ته ورسېدل نو له مسلمانانو سره د جګړې او د بيت المقدس لاندې کولو په نسبت يې د نوموړي ښار تصرف ته ترجيح ورکړه.

له څلورمې او پنځمې جګړې وروسته، د صليبي جګړو لاره بدله شوه. له يوې خوا د بيزانس امپراتورۍ صليبي جګړه مارانو ته اجازه ور نه کړه چې د دوی د واکمنۍ له سيمو څخه تېر شي او د مسلمانانو پولو ته ورسېږي. په همدې توګه صليبيان د ايټاليا له شمالي بندرونو څخه وخوځېدل، له مديترانې څخه تېر شول او د صليبانو تړواک لاندې د شام څنډو او بندرونو ته ورسيدل. له بله پلوه، پاپ د صليبي لښکرو د برابرولو لپاره په اروپايي شاهانو ډېره ولګوله. نو ځکه له شپږمې څخه تر نهمې

ټولې صليبي جګړې پاچاهانو د فيوډالانو او شواليه په ملاتړې رهبري کولې. دوی نه یوازې خپلو ګټو پسې لرې سيموته تلل، بلکې په دې فکر کې وو چې صليبيان نه شي توانيدلی چې د مديترانې ختيځې سيمې لاندې کړي. له دې امله سياسي فعاليتونو ته يې تر جګړو ډيره پاملرنه وکړه.

د صليبي جګړو په وروستيو کې چې کوم مهم بدلون رامنځته شو، د سوداګرۍ لپاره له مسلمانانو سره د مسيحيانو نژدې کيدل وو. چې د ایټاليا د شمالي بندرونو ګرځندويانو وکولای شول له دې سوداګرۍ څخه ډيره ګټه پورته کړي.

په داسې شرايطو کې چې سوداګري د صليبيانو لپاره غوره انګيزه ګرځېدلې وه، نو له دې امله په دې سيمو کې د صليبيانو په وړاندې د مسلمانانو قدرت زيات شو. د ايوبيانو پرځای ځواکمن حکومت رامنځته شو چې د صليبيانو وروستۍ هڅې باندې د پرله پسې يرغلونو په پايله کې يې د شام ساحلي سيمې ونيولې. چې په دې ترتيب صليبي جګړې وروسته له (۲۰۰) کلونو په (۱۲۹۱) کې د مسلمانانو په برياليتوب پای ته ورسېدې.

## د صليبي جګړو پايلې

- صليبي جګړې د اروپايانو په ماتې سره پای ته ورسيدې، خو نوموړې يې له اسلامي تمدن سره بلد کړل او له هغو څخه يې ګټه واخيسته.

- صليبي جګړې د هغه وخت تر ټولو پرمختللي تمدن(اسلامي تمدن) سره د اروپايانو د نژديوالي لامل وګرځېدې چې دا پخپله د اروپايانو د فکرونو د خلاصون د نړۍ د واقعيتونو په هکله د دوی د سترګو غړولو او خپل موقعيت ته د کتنې په برخه کې ډېر ګټور وو.

- صليبي جګړې د نويو اقتصادي برخو د پراختيا سبب وګرځېدې. د مديترانې د ختيځ او د افريقا د شمال له لارې اروپا له مسلمانانو سره سوداګري پيل کړه، او د بورې، کاغذ، قهوې، قطب نما، پنبه يي ټوټې، درمل او داسې نور محصولات او شيان د اروپايانو لاسته راغلل. دا ډول محصولات او شيان په اروپا کې نه پيدا کېدل. د دې شيانو لاسته راوړل او وروسته توليدول د اروپا په وچه کې د ژوند د کچې، کار او فرهنګ د لوړېدو لامل وګرځېدل.

- سربېره په بيلا بيلو درملو چې اروپايان يې ډېرغوښتونکي وو، د طبابت اړوند کتابونه لکه کيميا، درمل جوړونې، درمل پېژندنې، ژوند پيژندنې، ميخانيک او د دې په څېر نور ډېر زيات کتابونه د اروپايانو

لپاره ډېر ګټور وو. همدارنګه هغه علوم چې اروپا ورسره مينه وښودله هغه جغرافيه او نجوم وو. دغه دوو علومو د سيمو، لارو، بحري ګرځېدويي او سوداګرۍ په برخه کې ډېره مرسته کوله. عقلي علومو لکه فلسفې هــم په اروپـــا کــې ډېــر مينه وال درلودل او د اسلامي نړۍ د لويو فيلسوفانو ابن سينا او فارابي آثار په لاتين ژبه وژباړل شول. په دې وخت کې اندلس (هسپانيه)، تونس، د شام سواحل(سوريه) او د مصر اسکندريه له اسلامي نړۍ څخه اروپا ته د اقتصادي، فکري، علمي او فني لاسته راوړنو د لېږدونې ترټولو مهمې دروازې وې.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي او هره ډله دې يوه له لاندېنيو پوښتنو څخه، وروسته له مشورې د يوه غړي په واسطه نورو ته وړاندې کړي.

۱. ولې د بيزانس حکومت صليبي جګړه مارانو ته اجازه ورنه کړه چې د دوی د واکمنۍ له سيمو څخه د مسلمانانو جګړو ته ور شي؟

۲. ولې د لومړۍ صليبي جګړې فاتحان د نويو کډواليو په راتګ خواشيني شول؟



### پوښتنې

۱- د اروپا ټولنيزې وضعې څه ډول صليبي جګړوته زمينه برابره کړه؟

۲- دريمه صليبي جګړه څه ډول را منځته شوه او په څه پای ته ورسيده؟

۳- په څلورمې صليبي جګړې کې د صليبيانو کړندود د کوم واقعيت ښانوونکی دی؟

٤- په وروستيو صليبي جګړو کې د اسلامي نړۍ په وړاندې د اروپايانو په فکر کې څه بدلون را منځته شو؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

د صليبي جګړو د پايلو په هکله يو مطلب چمتو کړئ.

# په اروپا کې رنسانس

## د ښاري ژوند پراختیا او د ښاریانو ځواکمنتیا

رنسانس یعنې څه؟ او څه ډول را منځته شو؟

د منځنیو پېړیو په وروستیو کې چې کوم فکري او فرهنګي تحولات او بدلونونه را منځته شول د رنسانس یعنې د نوې زیږیدنې په عصر شهرت لري. او د دې مفهوم د لرغوني روم او یونان د تمدن راژوندي کېدل دي چې د منځنیو پېړیو په پیل کې هېرشوي وو.

هغه څه چې د رنسانس په عصر کې رامنځته شول او په اروپا کې یې د منځنیو پېړیو څېرې ته بدلون ورکړ عبارت وو له:

١- د ښاري ژوند پراختیا او د ښاریانو ځواکمنتیا.

٢- د پاچاهانو د ځواک زیاتیدل او د فیوډالانو کمزورول.

٣- (Humanizam) بشر دوستی او عقل پالنه ( د عقل او استعدادونو ورده)

٤- د سوداګرۍ او مسلک پراختیا.

٥- جغرافیوي اکتشافات.

د دې له پاره چې رنسانس د منځنیو پېړیو په وروستیو کې رامنځته شوی دی، نو په دې ځای کې د اروپا تاریخ له ١٣٠٠ کال څخه تر ١٦٠٠ م. کال پورې ترکتنې لاندې نیسو.



د رنسانس په پیر کې د اروپا سیاسي وضع

صلیبي جګړو د اروپا د خلکو ستونزې حل نه کړې. په اروپا کې د ځمکو د کموالي په پایله کې یو زیات شمېر ځمکوال رعیت په بې ځمکو رعیت بدل شول. یو شمېر کروندګرو د فیوډالانو د ظلم له امله شورش وکړ، له کلو څخه تښتېدل او د پا چا له رعیت سره یو ځای کېدل. همدغه ډله په بېلابېلو کسبونو او راکړه ورکړه بوخت شول او په اروپا کې یې د نویو ښارونو بنسټ کېښود. له صلیبي جګړو وروسته چې د سوداګرۍ پراختیا را منځته شوه د ښاریانو د اقتصادي پراختیا په برخه کې یې مرسته وکړه. د ښار اوسېدونکو ته یې بورژوا ویل چې ښاري اوسېدونکي معنا ورکوي. ښار چې د پلورنې او پېرودنې مرکز دی، له پیسو څخه ګټه اخیستنه پکې زیاته شوه؛ ځکه د راکړې ورکړې لپاره اړین شی پیسې دي.

په لومړیو کې د ښار پراختیا زیاتره په ساحلي ځنډوکې وه. ځکه چې په هغو ځایونو کې فیوډالان لږ وو.
په پایله کې په اروپا کې د ښارونو پراختیا او د فیوډالیزم د سوداګرۍ غوړېدنه کمزورې شوه.
پاچاهانو له فیوډالانو څخه غوښتل چې مالیات ورکړي، او دغه مالیات هم باید د پیسو په بڼه تحویل شي؛ ځکه د پیسو د لاسته راوړلو لپاره د ښار بانکدارانو او سوداګرو ته ورتګ اړین و.
د دغه حالت په پای کې د ښاري ژوند اقتصاد په فیوډالي اقتصاد غوره والی تر لاسه کړ، او ښاري اشراف یې له ځانګړي مقام څخه برخمن کړل. په دې دوره کې فیوډالو اشرافو هڅه کوله چې خپل پخوانی ځای بیا تر لاسه کړي. دغه ټولنیز اخ وډب ډېر دوام وکړ او په پای کې د بورژوا په ګټه پای ته ورسیده. د اروپا ښارونه او اوسیدونکي زیات شول او لرغوني روم د ښاري ژوندون څخه په ګټې اخیستنې ښاري ژوندته قوانین او لارې غوره کړې چې د اروپایانو د نوي ژوند بنسټ یې کېښود.

## د پاچاهانو ځواکمنېدل

هغه مالیات چې اروپایي پاچاهانو له فیوډالانو څخه اخیستل زیاتره یې د خپل حکومت د ځواکمنتیا په لاره کې لګول، پاچاهانو د ګڼ شمېر سرتېرو په ګمارلو سره، منظم او دایمي لښکر رامنځته کړ، او د وسلو په ځانګړې توګه د توپ په جوړولو یې پیل وکړ. په پایله کې پاچاهان د فیوډالانو د پوځي ځواک له مرستې څخه بې نیازه شول. په ځانګړې توګه چې د اړتیا په وخت کې به د توپ په واسطه د فیوډال کلاګانې هم رنګېدلې نو په دې ټوګه د فیوډالانو ځواک د پاچاهانو په ګټه لږه شوه. د دې لپاره چې پاچاهان په اصل کې له همدې پوړ څخه وو، له دې وروسته یې فیوډالو اشرافو ته د ځینو سیمو حکمراني او د حکومت مقامونه وسپارل. له دې امله ټول واک د پاچاهانو لاسته ورغلو. له دې وضعې څخه، سربېره په پاچاهانو، بورژوا طبقه هم خوشحاله وه، ځکه د مرکزي حکومت په جوړېدو سره اداري یووالی، د واحد نظم او امنیت ټینګښت او د یوه شان قوانین منځته راتلل. دغه کار د سوداګرۍ د پراختیا او آسانۍ په برخه کې مرسته کوله چې د بورژوا هیله هم همداوه.
د پاچاهانو ځواکمنېدل د دې لامل وګرځېدل چې د کلیسا په چارو کې هم لاسوهنه وکړي او وتوانیدل چې د پاپ د قدرت کړۍ کوچنۍ او خپل واک زیات کړي.

## سیاسي بدلونونه او د مرکزي حکومتونو منځته راتلل

د رنسانس په پېر کې د مرکزي حکومتونو متحدو قلمروونو او ملتونو رامنځته کېدل په آرامۍ سره تر سره کېدل. هیڅ یو اوسنی اروپایي هېواد، ننني وضعه نه لرله.
د انګلستان په پارلمان کې د فیوډالو اشرافو شتون، د دې هېواد د حکومت بڼه یې په مشروطه سلطنت بدله کړه. د اوسنۍ فرانسې زیاتې برخې د انګلستان د پاچاهانو په واک کې وې. خو د فرانسې پاچاهان چې د فیوډالانو په ټکولو کې ډېر ځواکمن شوي وو، د دې قلمرو د ترلاسه کولو لپاره ډګر ته راووتل.
د جګړو پایلې ډېرې ورانې او ویجاړې وې، ځکه دغو جګړو سل کاله دوام وکړ. په پایله کې فرانسو یانو د ژاندارک(Jeandearc) په نامه د یوې جینۍ په پاڅون بریالیتوب تر لاسه کړ.
په هسپانیا کې د هسپانیا شمالي ایالاتونه چې د مسیحي پاچاهانو په لاس کې وو، د مسلمانانو په وړاندې یې په سویل کې نوي بریالیتوبونه وګټل او وتوانېدل چې د مسلمانانو وروستی مقاومت په ټپه ودروي.
د اروپا په مرکزي او ختیځو ځنډوکې د یوه ځواکمن دولت د جوړېدو لپاره ، په ډیرورو حرکت سره د

هغه له لویدیځو ځنډو یعنې انګلستان، فرانسې او هسپانیا څخه تیرېدل. ځکه د فیوډالانو اشرافیت په دوی کې تر اوسه ډېر ځواکمن و. په آلمان (د روم په مقدسه امپراتورۍ) کې همدغو اشرافو د امپراتور مقام په رسمي توګه مانه. په روسیه کې هم فیوډالان د ډېرواک لرونکي وو. تر هغه پورې چې په (۱۵۳۳-۱۵۸٤م) کال کې څه وخت چې څلورم ایوان (Ivan IV) واکمنۍ ته ورسېد، اشراف فیوډالان وځپل شول. دوی که څه هم له منځه ونه ایستل شول خو په روسیه کې یو مرکزي ځواک رامنځته شو او د ارتودوکس مذهب پراختیا هم د روسانو د یووالي په ځواکمنتیا کې مرسته وکړه.

د اروپا د سویلي سیمو وضعې د نورو سیمو په وړاندې د مرکزي حکومت د رامنځته کېدو په لور ګامونه پورته کول. د بالکان په شبه جزیره کې د بیزانس حکومت وروسته د صلیبیانو له ګوزارونو څخه ونه توانېده چې په پښو ودرېږي، او واک یې د تل لپاره له لاسه ورکړ. د عثماني ترکانو وړاندې تګ او د صرفانو او مجاریانو د خپلواکۍ غوښتنې روحیې د دوی زوال لاګړندی کړ. د ایټالیا په شبه جزیره کې، د دې سیمې شمالي ښارونه او بندرونه د سوداګرۍ او ښاري ژوند له لارې د ډېرو شتمنیو خاوندان شوي وو، خو دا سیمه د مرکزي حکومت له شتون څخه بې برخې وه.

## په اروپا کې علمي او فرهنګي رنسانس

د رنسانس دوره په اروپا کې، له ټولنیزو ، سیاسي او اقتصادي بدلونونو سره همغاړې او د فکر، هنر، علم او فن په برخه کې هم بدلونونه رامنځته شول.

د رنسانس یو له مهمو اړخونو څخه انسان پالنه یا انسان دوستي (هوما نیزم) او فرد پالنه ده. وروسته له صلیبي جګړو څخه د اروپایانو بلدتیا له فلسفي آثارو سره په ځانګړې توګه د لرغوني یونان د دې لامل وګرځېده چې تر څو په انسان او د ده په عقل زیات باور وکړي.

د رنسانس د زمانې له فلسفي او اخلاقي آثارو څخه پرته چې د انسان پالنې تمایلات یې پکې منعکس کړي وو، د هنر په برخه کې هم دغه عقاید په ښه توګه لیدلای شو. د رنسانس دورې د زیاتره انځورونو او مجسمو جوړولو موضوع انسان ده. په دې آثارو کې چې د لویو انځورګرانو لکه داوینچي له خوا وینځېدل د انسان احساس فکر، عملونو او طبیعت ته هم ډېره پاملرنه شوېده.

د رنسانس په دوره کې د ادبیاتو په برخه کې هم بدلونونه رامنځته شوي دي. د څو پېړیو مخکې بر عکس ټول باسواده کلیسایان نه وو. دوی هم د هنرمندانو په څېر انساني موضوعات په خپلو آثارو کې ځایول. دانته او پترارک د دې عصر له مشهورو ادیبانو څخه دي.

طبیعي (تجربي) علوم چې مخکې د پاملرنې وړنه وو، د رنسانس په پېر کې یې مینه وال پیدا کړل. په دې برخې کې اروپا ته د اسلامي علومو لېږدېدل ډېر اغېز من وو. په دې دورې کې د راجربېکن هاروي په نامه یوه عالم د وینې د دوران څرنګوالی کشف کړ.

همدارنګه په ریاضیاتو، نجوم او جغرافیه کې هم نوي فکرونه را منځته شول. کپرنېک د ځمکې کروي والی او وروسته له ده ګالیله د لمر په شاوخوا د ځمکې څرخېدل کشف کړل.

که څه هم د اختراعاتو په برخې کې دومره پرمختګ رامنځته نشو خو بیا هم د ګوتنبرګ په واسطه د چاپ دستګاه او د ګالیله په واسطه د تلسکوف آله اختراع شوه.

## د بشر په جغرافیوي پوهه کې بدلون

بشر د خپل ځو زره کلن ژوند په ترڅ کې د ځمکې د کُرې له ځینو سیمو څخه معلومات نه درلودل. او د دوی جغرافیوي پوهه په آسیا، اروپا او افریقا پورې محدوده وه. د همدې سیمو په هکله یې هم بشپړ معلومات په لاس کې نه درلودل. د بېلګې په توګه سویلي نیمه کره کابو ناپېژندل شوې پاتې وه. اوله لویدیځې نیمې کرې څخه هم معلومات نه وو. په داسې حا ل کې چې دا سیمې له اوسېدونکو تشې نه وې او تمدنونه یې درلودل. خو دغو تمدنونو په آسیا، اروپا او افریقا کې له نورو تمدنونو سره اړیکې نه لرلې.

د صلیبي جګړو په ترڅ کې خبرتیاوې د مسلمانانو او نورو ختیځو سیمو د تمدنونو فنون او جغرافیوي خبرتیاوې اروپا ته ورسېدلې. چین ته د مارکوپولو سفر د اروپایانو د جغرافیوي پوهې په برخه کې ډېره مرسته وکړه. نوموړي د ایټالیا د وینز له ښاره د آسیا لویدیځ ته راغلو او له ایران او افغانستان څخه په تېریدو چین ته لاړ. او وروسته له شلو کلونو څخه د هند اقیانوس له لارې وینز ته بېرته وګرځېد. نوموړی لومړنی سړی و چې اروپایان یې له جاپان او آرام اقیانوس څخه خبرکړل.

## د سمندري ګرځندویې پراختیا او د اکتشافاتو پیل

له صلیبي جګړو مخکې، د اروپایانو سمندري ګرځندویې د اروپا په شمالي سمندرونو کې تر سره کېده، خو وروسته له صلیبي جګړو څخه لږ لږ اروپایانو په مدیترانه کې هم سوداګري پیل کړه. نوموړو په اروپا او اسلامي سیمو کې د کښتیو جوړولو فن څخه په ګټې اخیستنې سره، نوې بېړۍ جوړې کړې چې له پخوانیو کښتیو څخه هم کلکې او هم لوې وې او د ګرځندیتوب او لارښوونې اخیستنې په برخه کې هم له پخوانیو څخه پرمختللې وې، قطب نما چې مسلمانان د چینایانو له خوا ورسره آشنا شوي وو، د اروپا یانو لاسته ورغله او په دې توګه د بحري سوداګرۍ په پراختیا یې اغېزه وکړه.

د منځنیو پېړیو په وروستیو کې د مدیترانې په سمندرګی کې د سمندري سوداګرۍ له لارې د شتمنیو ګټلو او واک پر سر سیالیو زور ونیوه او له بلې خوا سیاسي او مذهبي اختلافاتو هم دې سیالیوته لمنه وهله. په (۱۴۵۳ ز) کال کې عثماني ترکانو چې د مدیترانې د شمال ختیځو سواحلو زیاتره سیمې یې لاندې کړې وې، د قسطنطنیې په نیولو وتوانېدل چې د بیزانس امپراتوري ړنګه کړې او د مدیترانې شمال ختیځې برخې له دې



د جغرافیایی اکتشافاتو مسیر

وروسته اروپایانو د بیزانس په ځای له عثمانیانو سره راکړه ورکړه پیل کړه.
خو د پرتګال او هسپانیا حکومتونو له دې سوداګرۍ څخه ځکه ګټه نشوای اخیستی چې له عثمانیانو سره په جګړه بوخت وو. نو په دې توګه دوی غوښتل چې د مدیترانې په ځای د اطلس له سمندر څخه ګټه واخلي.

## پرتګالیانو د ختیځو سیمو په لور سمندري لارې کشف کړې

د پنځلسمې زیږدیزې پیړۍ له نیمایي وروسته پرتګالیانو د افریقا د لویدیځو سواحلو له لارې د سویل په لور په سمندر کې په سفر پیل وکړ. په هماغه حا ل کې یې د عاج او غلامانو په سوداګرۍ هم پیل وکړ. د دوی د تصور خلاف د افریقا جنوبي نقطه ډېره لرې واقع وه. په پای کې په (۱۴۸۷م) کال کې بارتولو مودیاز وتوانیده چې د افریقا د وچې له جنوبي وروستۍ څنډې څخه تېر شي. چې دا څنډه ( دماغه امید نېک) په نامه یادېده او په ختیځو سیمو کې د هند له اقیانوس څخه تېرشو. دغه کشف ډېر مهم و. وروسته له هغو پرتګالي ګرځندوی واسکودوګاما وتوانېده چې د هند ټول اقیانوس پلی کړي او د هند، اندونیزیا او د فارس خلیج لارې یې وموندې.
له اطلس سمندر څخه د هند سمندر په لور د سمندري لاروموندلو وروسته پرتګالیانو د آسیا نورو سویلي او ختیځو سواحلوته ځانونه ورسول.

## د امریکې وچه څنګه کشف شوه؟

هغه وخت چې پرتګالیان له افریقا څخه د تاویدلو په نیت د ختیځ په لور وخوځېدل. هسپانوي ګرځندویانو د کریستف کولمب په مشرۍ له څو بېړیو سره هند ته د رسېدو په نیت د اطلس سمندر لویدیځ لورته سمندري سفر پیل کړ. دوی ته لاره نه وه معلومه او د لرې سیمو له اوبو او هوا څخه نه وو خبر. په پایله کې ځینې بېړۍ ډوبې شوې. د خوراکي موادو کموالي هم دوی له ناروغیو سره مخامخ کړي وو او ځینې یې له منځه وړي وو.
په پای کې کرستیف کولمب او ملګري یې د څو میاشتو ستونزو له زغملو وروسته په (۱۴۹۲م) کال کې جزیرې ته ورسېدل. کرستف کولمب په دې خیا ل کې و چې د هندوستان یوې جزیرې ته رسیدلي، د هغه ځای سور پوستي بومیان یې هندیان ونومول. نوموړی هسپانیا ته بېرته راوګرځېد او یو ځل د تېرو تجربو په درلودلو سره، نوموړي په آسانۍ سره وکولای شول چې نویو سیموته ورسېږي. او بیایې هم فکر کاوه چې هندوستان ته رسیدلی دی. نوموړی د ژوند تر پای پورې په خپله تېروتنه کې پاتې شو.
له کرستف کولمب وروسته هم چې کومو ګرځندویانو د سمندري اکتشافاتو او ګرځندویۍ په لاره کې ګامونه اوچت کړي وو. په دې نه پوهېدل چې نوې وچه یې کشف کړېده. تر هغه پورې چې د امریکوو سپوچي په نامه یو ګرځندوی و پوهېده چې هغې سیمې ته چې دی رسېدلی دی هغه هندنه، بلکې نوې وچه ده. دغه وچه یې د ده په نامه امریکا ونوموله.
انګلیسي او فرانسوي ګرځندویانو، د امریکا د وچې شمالي سواحل کشف کړل چې اوسنی کاناډا او د امریکې ایالتونه رانغاړي. یوه انګلیسي ګرځندوی استرالیا کشف کړله. زیاتره جزیرې او سواحل هم په تدریج سره کشف شول او ورو ورو د ځمکې دکرې نقشه مشخصه شوه. وچه، سمندرونه او د هغو حدود او پولې د بشر لپاره معلوم او د نړۍ نقشه لږ تر لږه په اوسني شکل وپېژندل شوه.

## د پرتگالیانو او هسپانویانو استعمارگري

هغه سیموته چې پرتگالیان، هسپانویان او نور ورسېدل، له اوسېدونکو تش نه وو. خو د دې لپاره چې د اروپایانو لپاره نوي وو نو کشف به یې بلل. د بېلګې په توګه د امریکا په وچه کې د سورپوستکو تمدن موجود و. په هر حا ل اروپایانو له جنګي ببړیو او توپونو څخه په ګټې اخیستنې سره ګڼ شمېر بومیان چور او ووژل.

د البورکرک په نامه یوه پرتګالي ګرځندوی په هند کې د ((ګوا)) جزیره کشف کړه، او هغه ځای یې په ختیځو سیمو کې د پرتګالي استعمار مرکز وټاکه. پرتګالیانو په زور سره د افریقا په ختیځو او لویدیځو سواحلو او ښارونو کې خپل واک ټینګ کړ. د هرمز او عدن بندرونه د دوی په واسطه اشغال، او په چین کې یې د هنګ کنګ بندر ونیوه او په دې توګه یې د لویدیځو سیمو سوداګري خپله کړه.

څرنګه چې په لویدیځو سیمو کې د پرتګالیانو سوداګري د هسپانویانو له خوا تهدیدېده نو پرتګال او هسپانیا ترون لیک ته ورسېدل، چې ختیځ په پرتګال او لویدیځ په هسپانیا پورې وتړل شو. په دې توګه د وی ځانونه د ټولې نړۍ واکمنان ګڼل.

هسپانویانو د امریکا د شتمنیو لاسته راوړلو له پاره د پوځي لښکرو په واسطه د سور پوستو په وژنه لاس پورې کړ، او د ازتک او اینکا تمدنونه یې له منځه یوړل. استعمار به چې هر ځای ته لاره پیدا کوله، د هغه ځای وګړو ته به یې ډېر زیانونه به وراړول.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي.

لومړۍ ډله دې د لرغوني یونان د فلسفي آثارو په هکله؛

دویمه ډله دې د جغرافیوي اکتشافاتو په برخه کې د مسلمانانو د ونډې په هکله؛

دریمه ډله دې د ختیځو سیمو اوسېدونکو د کمزوره کېدو د لاملونو او په نوي پیر کې د اروپایانو د برلاسیو په لاملونو خبرې وکړي، او پایله دې د ډلې د یوه استازي له خوا نورو ته وړاندې شي او ښوونکی دې پوره پاملرنه وکړي.



### پوښتنې

۱- په اروپا کې د رنسانس په پیر د ښاري ژوند د پراختیا لاملونه څه وو؟

۲- د کومو لاملونو له مخې د رنسانس په پیر کې د اروپایي پاچاهانو واکمنۍ زیاته شوه؟

۳- د رنسانس په پیر د هنر په بر خه کې کوم بدلونونه رامنځته شول؟

٤- د رنسانس په پیر د طبیعي علومو په برخه کې څه بدلونونه رامنځته شول؟

٥- د اروپایانو لپاره د جغرافیوي اکتشافاتو په برخه کې څه ډول زمینه برابره شوه؟

٦- د امریکا وچې د کشف بېلابېل پړاوونه په لنډه توګه روښانه کړئ.

۷- جغرافیوي انکشافاتو د اروپایانو لپاره څه پایلې درلودې؟



### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د رنسانس پیر د یوه عالم، ادیب یا هنرمند د خدمتونو په هکله یو مطلب چمتو کړي.

# په نويو پېړيو کې د اروپا علمي او فکري بدلونونه

پدې لوست کې به په معاصرو پېړيو کې د اروپا د علمي او فکري بدلونونو په څرنګوالي او همدارنګه د دغې لوېې وچې د هغه مهال له پوهانو سره اشنا شئ او د هغه په توپير به د اروپا د منځنۍ پيړيو د علمي او فکري بدلونونو سره پوه شئ.

په نويو پيړيو کې د اروپا ټولنيز او مذهبي بدلونونو د اروپايانو په علمي او پوهنيز تمايل کې بدلون راووست. لکه څنګه چې فرانسيس بيکن يوله پخوانيو پوهانو څخه داسې ويلي چې: «د پوهې موخه د انسان د ځواک ډيروالی دی» د دغسې تفکر په پايله کې، له هغه وروسته يواځې هغو زده کړو ته پاملرنه وشوه چې د انسان لپاره يې مالي ګټه په څنګ کې لرله، نو له همدې امله و چې تر ټولو د مخه طبيعي علومو(تجربي) ته پام واړول شو. له هغه ځايه چې پاچاهانو د خپلو ځواک د ډيروالي مينه وال وو او ښار ميشته سوداګر(بورژوا) هم د خپلو شتمنيو د ډيروالي غوښتونکي وو، دې ډول زده کړو ته چې په حقيقت کې د ځواک او شتمنيو راوړونکي او توليدونکي وو ځانګړې پاملرنه در لوده، او ځانونه يې د زده کړې(پوهې) مينه وا ل او د پوهانو ملاتړې ښودل.

هغوی د پوهانو د څېړنو، کشفياتو او نوښتونو د زيار پايلې په ډير کم ارزښت سره تر لاسه کولې. د بېلګې په توګه که چيرې کيميا پوهانو کولای شوای چې ښه باروت تيارکړي، پاچاهانو به په بهتره اورلېږونکو وسلو د خپلو توپخونو د سمبالولو لپاره ترې ګټه اخيستله. اوکله چې د بخار ماشين کشف شو، پانګه لرونکو له هغه څخه د خپل توليد د ډيرولو لپاره ګټه واخيسته. په ټوليز ډول د دغه مها ل د نويو علومو مهمو ځانګړتياوو له ډلې څخه يو هم، په صنعت او تکنالوژۍ او د توليد لوړوالی د هغو د بدلون وړتيا کې وه.

## متفکران او پوهان

په نويو پېړيو کې څلور پوهان د نويو علومو مخکښان شول، کوپرنيک، کپلر، ګاليله او نيوتن. دغو پوهانو دوه مهمې ځانګړنې در لودې چې يو يې صبر او ډيره حوصله د طبيعي پېښو په پلټنه، ليدکاته او بررسۍ کې او بل يې ډيره زيرکتيا او هوښيارتيا د علمی فرضيو په رامنځته کولو کې درلوده، چې له همدې امله د مخالفينو او د پخوانيو(زړو) علومو د ملاتړ کوونکو له ډېرو سختو بريدونو او نيوکو لاندې راغلل.

په نويو پيړيو کې لا تر اوسه علوم د نن ورځې د علومو په شان تخصصی(ځانګړي) شوي نه وو.

له همدې امله و چې هر پوه په څو علمي برخو کې کار کاوه. د بېلګې په ډول ګاليله د ستورو په پيژندلو کې او پاسکال رياضی پوه د فزيک په علم کې هم کار کاوه. نيوټن انګليسی پوه هم رياضي پوه او هم فزيک پوه و او وېې کولای شول چې د جاذبې قانون کشف کړي.

په نويو پيړيو کې د کيميا علم هم نويو لاسته راوړنو او نوښتونوته ورسيد، د بېلګې په توګه فرانسوي لاوازيه وکولای شول چې د اوبو تجزيه (لرې والی) او يو ځای والی(ترکيب) او همدارنګه د اکسيجن په وسيله د نورو موادو يوځای والی وښيي. همدارنګه د موادو د خواصو او ځانګړتياوو او دعناصرو د طبقه بندۍ په اړه هر اړخيزې هڅې وشوې.

په نويو پيړيو کې د اروپا فيلسوفان، توماس هابز( انګليسی)، ديکارت(فرانسوي)، اسپينوز(هالندي) او

لایب نیتس(آلماني) ول چې خپل فلسفي افکارېې بشري عقل او فکر ته د اعتبار ورکولو پر بنسټ ټینګ کړل. پخوانیو عقیدو او کړنو، د کلیسایي احکامو او د دولتونو د امر او نهی له بند څخه و هغوی د انسان د فکر او عقل د خپلواکۍ غوښتونکي.

په دې پیر کې د مورخینو په عقاید و او فکرونو کې هم یو لړ بنسټیز بدلونونه رامنځته شول. چې د تاریخي مطالعاتو په بهیر کې د مهمو بدلونونو لامل شول.

**لومړی**: د اروپا د تېرو پېړو فرهنګي او مدني آثارو لکه د یونان اولرغوني روم آثارو ته پام واړول شو، په داسې حال کې چې په منځنیو پېړیو کې هغه دوران ته د شرک او بت پرستۍ د آثارو په توګه کتل کېدل، او له همدې امله کومه ځانګړې پاملرنه یې ورته نه درلوده.

**دویم**: مورخینو د پاچاهانو او حکمروایانو د ژوند د پېښو د څرګندولو پر ځای، د عامو وګړو د ژوند ټولنیز او اقتصادي حالاتو او اړخونو ته ډېر پام واړاوه.

**دریم**: د سیاسي او نظامي پېښو د بیانولو پر ځای هغه وشوه، چې د هغو پېښو لاملونه او پایلې وڅېړل شي، او د بشري ټولنو د بدلونونو د بهیر ټول حاکم قواعد او قوانین وموندل شي.

**څلورم**: د نویو پوهو د نوښتونو په کارولو سره، په ځانګړې توګه لرغون پېژندنې او سکه پېژندنې مورخینو سره یې مرسته وکړه، تر څو د ملتونو د تېر تاریخي بهیر څخه یوه واقعي طرحه او تصویر په ګوته کړي.

د روم امپراتورۍ سقوط او زوال کتاب چې د ګیبون اثر دی ، د تاریخ لیکنې د یوې نوې تګلارې یو ښه مثال دی.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي او هره ډله دې په لاندې موضوعګانو خبرې وکړئ:

۱- د منځنیو پېړیو او نویو پېړیو ځانګړتیاوې په یو جدول کې انځور او یوله بل سره دې پرتله کړي.

۲- په نویو پېړیو کې د تاریخ پوهانو په تفکر او لید کې څه بدلون را منځته شو؟

۳- په نویو پېړیو کې ولې پوهانو طبیعي علومو ته ډېره پاملرنه وکړه؟



## پوښتنې

۱- د نویو پېړیو د پېژندل شویو او نامتو پوهانو نومونه وواياست؟

۲- د نویو پېړیو عمده ځانګړتیاوې او خصوصیات په لنډه توګه بیان کړئ؟

۳- پوهه د یوې ټولنې په پرمختګ کې څه رول لري؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

د اروپايي هېوادونو نومونه په یوه جدول کې ترتیب کړئ.

# په نویو پېړیو کې د اروپا سیاسي بدلونونه

د اروپا نقشې ته وګورئ. په شپاړسمه زېږدیزه پېړۍ کې انګلستان او فرانسه څه ناڅه په اوسني شکل و، او د روم مقدسه امپراتوري د اروپا په مرکز کې پرته وه.
په سویلي برخه کې یې سویس پروت و، چې عملاً خپلواک و، خو خپلواکي یې په رسمیت نه وه پېژندل شوې. د ایټالیا شمالي ښارونه هم د هغه په شاو خواکې پراته وو. د روم په شاوخواکې د پاپ دولت و چې د څو ایالتونو یوه ټولګه وه او پاپ پر هغوی ریاست کاوه. د اروپا په ختیځ کې لهستان د مقدسې امپراتورۍ او روسیې تر منځ پروت و، او مجارستان د عثماني امپراتورۍ په ګاونډیتوب کې په سختۍ سره ساکښله.
په شپاړسمه پېړۍ کې هسپانیا د لوی ځواک لرونکي اروپایي دولت په توګه شمېرل کېده.
په دې لوست کې به په نویو پېړیو کې د اروپا مهمو سیاسي بدلونونو سره بلدتیا پیداکړئ.

## په شپاړسمه پیړۍ کې د هسپانیا برلاسي

د اندلس د مسلمانانو له ماتې وروسته په (۱۴۹۲ م)کا ل کې هسپانیا یو ځل بیا د مسیحیانو لاسته ورغله. په هماغه کال کې امریکا هم کشف شوه.

پردې مهال شارلکن و(۱۵۱۹ کال څخه تر ۱۵۵٦م) د هسپانیې پاچا چې د هسپانیې له پاچاهۍ سربېره د روم امپراتوري هم له همدې امله د هالند، بلجیم، اتریش او آلمان هېوادونه د هغه د قلمرو برخه و. د امریکا د لویې و چې په کشف سره په سویلي او مرکزي امریکاکې لویې مستعمرې هم د هسپانیا په لاس ورغلې. په دې ترتیب سره هسپانیا د نویو پیړیو په پیل کې یو ځواکمن او زبر ځواک اروپایي هېواد و. له دې وروسته هسپانیا د پرتګال په نوم یو


اروپا د ۱۸م پېړۍ په پیل کې

کوچنی هېواد اشغال کړ چې د هغه د مستعمراتو په پراخیدو هم هڅې وشوې. د هسپانیې پاچاهانو عموماً هغه متعصب کاتولیکان وو چې د پاپ د مخالفو(پروتستان، یهودیان او مسلمانانو) سره یې ناوړه چلند او معامله کوله. د پاپ سره یې هم په پراخه پیمانه ملاتړ وکړ. خو د هسپانیې ځواک او قدرت تر ډېره وخته دوام ونه کړ او ورو، ورو هسپانیه د انحطاط او زوال خواته ولاړه.

هغه  لاملونه چې دې زوال ته یې لاره چمتو کړه، په اروپا کې د څو مهمو پېښو د رامنځته کېدلو لکه په مرکزي اروپا کې د پروتستان د نهضت بریالیتوب، له هسپانیا څخه د مسلمانانو ایستل، د هالند د وګړو پاڅون او د انګلستان له خوا د هسپانیا د سمندري پوځونو ماته وه.
د مسلمانانو په وړاندې، د هسپانیا د مسیحیانو مذهبي تاوتریخوالی او د عقایدو د تفتیش او پلټنې د محاکمو رامنځته کول په دې هېواد کې د څه کم یو میلیونو میشتو مسلمانانو د جبري مهاجرت او وتلو لامل شو. چې دا مسلمانان د هغه هېواد له وړ او کار پوهو صنعتګرو، هنرمندانو او بزګرانو له ډلې څخه وو، د هغوی په جبري توګه کډه کول له هسپانیا څخه دغه هېواد د دغه کارګرې طبقې له تجربو او وړتیاوو څخه بې برخې کړ.
په (۱۵۶۶م) کال کې د هالند هېواد وګړي د هسپانیه د نفوذ پر وړاندې را پاڅېدل، او وېې کولای شو چې پر هغوی بریالي شي او دخپل هېواد خپلواکي  تر لاسه کړي.
د هسپانیا پروړاندې د هالند د وګړو بریا، د دغه هېواد حیثیت او ځواک ته یوه لویه ضربه وه.
بل مهم لامل چې د هسپانیې پرمختګ ته یې د پای ټکی کېښود، د انګلیستان پر وړاندې په (۱۵۸۸م) کال کې د دغه هېواد سمندري ځواکونو ماته وه.

## فرانسه د څوارلسم لويي دواکمنۍ پر مهال

په تدریج سره چې هسپانیا خپل ځواک له لاسه ورکاوه، او کمزوري کېده، نورو اروپایي هېوادونو لکه هالند، فرانسه او انګلستان خپل ځواک لا پیاوړی کاوه. د اولسمې پیړۍ په پیل کې فرانسه د اروپا د پیاوړیو ځواکونو له ډلې څخه وه. دغه ځواک د لاندې لاملونو په پایله کې تر لاسه شوی و:
۱- د فرانسې ځواک او شتمنۍ، د هسپانیې د ځواک او شتمنیو بر عکس چې د امریکا د لوټې وچې د باد راوړو سرو زرو او شتمنیو څخه رامنځته شوی وه، د تولید او سوداګریزو چارو پربنسټ ولاړه وه.
۲- پادچاهانو د پوهو سلا کارانو او کار پوه ټولواکانو لکه ریشلیو، مازارین او کلبر د رایې او وړاندیزونو څخه ګټه اخیستله.
۳- د مذهبي خپلواکۍ سیاست په فرانسه کې، د کاتولیکانو او پروتستانانو ترمنځ مذهبي توپیرونه او کړکیچونه کم کړل.
٤- د فرانسې پاچا ادعا درلوده چې د هغه د پاچاهۍ سرچینه الهي ورکړه ده، نو له همدې امله یې ځان د اشرافو له ملاتړ او یا د پاپ له هوکړې څخه بې نیازه ګاڼه او د هغوی د غوښتنو په وړاندې یې د خپلې رایې په خپلواکۍ ټینګار کاوه.
د فرانسې ځواک په اووه لسمه پیړۍ کې د څوارلسم لویې د پاچاهۍ پر مها ل چې اویا کلونو په شاوخوا کې یې حکومت وکړ، خپلو لوړو پوړیو ته ورسېد. که څه هم چې د هغه د حکومت په وروستیو کلونو کې د فرانسې قدرت یو څه کمزوری شو. له دې امله چې د هېواد شتمني یې یوازې د درباري تجملاتو او ښکلو ودانیو په جوړولو لګولې.
سربېره پردې فرانسویانو د خپلو ګاونډیو هېوادونو سره په اروپا کې ښې اړیکې نه درلودې او د هغوی

## ډېر پوه شئ

### مرکانتلیسم(سوداګرۍ ښوونځی)

په ۱۶ او ۱۷ م، پېړیو کې چې ۱۰ او ۱۱ سپوږمیزو پېړیو سره سمون خوري، اروپايي دولتونو د خپلو شتمنيو او ځواک د ټينګولو لپاره يو ځانګړی پروګرام پلي کاوه، چې د سوداګرۍ يامرکانتلسیم لاس لرلو په بنسټ ولاړ و. مرکانتليستان په دې عقيده و چې د يوه هېواد رښتينې شتمني د هغه د پيسو او قيمتي فلزاتو د زيرمه کولو څخه عبارت دي چې د حکومت او يا وګړو سره اړين دي. په بل عبارت هر هېواد به چې ډېر سره او سپين زر درلوده، تر ټولو ځواکمن ګڼل کيده. له دې امله دولتونو هڅه کوله چې نه يوازې د خپل قلمرو څخه د سرو او سپين زرو د ايستلو مخه ونيسي بلکې له بهر څخه به يې خپل هېواد ته سره او سپين زره واردول. د دغه چارو د تر سره کولو لپاره اړينه وه، چې اقتصادي پولې او ګمرکي بناوې رامنځته ته کړي. دولتونو هڅه کوله چې د يو توکي د صادرولو په بدل کې بل ارزښتناکه او قيمتي توکي وارد کړي او يا دخپلو توکو دليږدولو په بدل کې پيسې ترلاسه کړي، او يا پخپل ځان د بسيا کيدو د سياسيت په وړاندې بيولو سره خپل هېواد د بهرنۍ تړاو او اړتيا څخه خلاص کړي.

له هغه ځايه چې په اروپا کې د مرکانتليستي سياست وړاندې بيول، د دې لپاره چې ټول هېوادونه د دغه سياست سخت غوښتونکي و، د اروپايانو مستعمراتو ته پام شو او هغه لورته يې مخه کړه.

په کورنيو چارو کې يې لاس وهنې کولې. پداسې حال کې چې د انګلستان سره جګړو د فرانسې وګړي په دې زماني کې ډېر په تنګ کړي وو، يا له بلې خوا د نانت د حکم لغو کيدل چې هغه پر بنسټ پروتستان د مذهبي خپلواکۍ څخه برخمن وو، هم د فرانسې د پروتستات چې ډېرې يې صنعتګر او سوداګر وو د هغوی د مهاجرت او کډه کيدو لامل شو. د غې مسئلې د فرانسې اقتصاد کمزوری کړ، پداسې حال کې چې د دغه هېواد اصلي سيال يعنې انګلستان خپل سمندري ځواکونه پياوړي کول، او خپلو مستعمراتو ته يې ورځ په ورځ پراخوالی ورکاوه.

## انګلستان خپل پاچا ګيوتين ته سپاري

د نويو پيړيو په پيل کې انګلينډ چې له يوې خوا، دکاتوليکانو او پروتستانتانو د اخ و ډوب ډګر و، او له بلې خوا د پاچا او پارلمان د جګړو ډګر شو. په دغه اخ و ډب کې د پروتستانتانو يوه ډله په انګلينډ کې بريالیتوب ته ورسيده. خو د پاچا او پارلمان تر منځ اخ وډب ضروري و چې په دې پېړيو کې د انګلستان د سياسي نظام بدلونونه له بنسټيزو لاملونو څخه شميرل کيږي. په (۱۶۲۸م) کال کې د انګلينډ پارلمان يوه لايحه (دعدالت غوښتنې حقوق) تصويب کړه چې د هغې په سبب لومړي چارلزته ويل کيده چې هغه د مطلق واک خاوند ندی او دا واک نه لري چې د قانون څخه پرته له چا څخه ماليات واخلي او يا څوک زندان ته ولېږدوي.

دغه مسئله په انګلستان کې د کورنيو جګړو او اختلافاتو لامل شوه چې په پای کې د پارلمان په بريالیتوب پای ته ورسيده. د دغه حرکت مشري د کرامول په نوم د يو با اراده او هوډمن نظامي قوماندان او ځيرک سياستوال په لاس کې وه چې هغه د (رويين تنان) په نامه يو نوی پوځ رامنځته کړ او ويې کولای شو چې سلطنتي ساتونکو(ګارډ) ته ماتې ورکړي. په پايله کې لومړی چارليز ونيول شو، لومړی زنداني او بيا په دار وځړول شو. وروسته بيا کرامول په هېواد کې جمهوري نظام ټينګ کړ.

کرامول غوښتل چې د انگلینډ د مستعمراتو سوداگرۍ ته لا زیاته وده ورکړي، ایرلنډیې اشغال کړ، هالندیانو سره یې جگړه وکړه، هغوی ته یې ماتې ورکړه او نوي سوداگریز قوانین یې را منځته کړل.
د کرامول په کړنو د انگلستان سمندري ځواکونه پیاوړي شول، په انگلستان کې لومړنی او وروستنی جمهوري نظام پای ته ورسیده او بیا سلطنتي نظام رامنځته شو.

## روسیه: لوی پتر په روسیه کې خپل خیالونه په واقعیت بدلوي

د( ۱۸ ز) پیړۍ په پیل کې د روسیې له امپراتورانو څخه د لوی پتر په نامه یوه امپراتور تصمیم ونیوه چې روسیه پر یوه پیاوړي دولت باندې بدله کړي. د روسیې د پیاوړي کېدلو لپاره د هغه برنامې عبارت وې، له:
۱- په نویو وسلو باندې د وسلوالو ځواکونو سمبالول، له نویو جنگي فنونو سره د سرتیرو بلدتیا.
۲- د سوداگرۍ او سمندري چلند پراختیا، او آزادو گرمو اوبو ته د لاس رسی هڅه.
۳- د روسیې لویدیځ کول

## په اتریش او پروس کې د نویو دولتونو رامنځته کېدل

د نویو پیړیو له مهمو سیاسي بدلونونو څخه یو هم په اروپا کې د نویو پیاوړیو دولتونو رامنځته کېدل و. له دغو دولتونو څخه یو هم د پروس(آلمان) دولت و. دغه دولت د روم د مقدسې امپراتورۍ په شمال کې را منځته شو او د لهستان(پولند) په نیولو سره یې قلمرو پراخ شو، او په لنډ وخت کې په یو مهم هېواد بدل شو.
اتریش هم چې د روم امپراتورۍ یو سویلي ایالت و، ورو ورو یې خپل قلمرو پراخه کړ او په یوې امپراتورۍ بدل شو. د اتریش تر ټولو مهم گاونډی عثماني هېواد و چې په ۱۸م/ ۱۲ لمریز پیړۍ کې یې دولت کمزوری شو او د متصرفاتو لویه برخه یې اتریش تر لاسه کړه او په اروپا کې په یو ستر هېواد بدل شو.



### په ټولگي کې فعالیت

۱- د معاصرو او منځنیو پیړیو توپیر په گوته کړئ،
۲- ستاسو په اند په معاصرو پیړیو کې د اروپا د پرمختگ مهم لاملونه څه و؟



### پوښتنې

۱- هسپانیه په شپاړسمه پېړۍ کې څرنگه د نورو هېوادونو په وړاندې مخکښه شوه؟
۲- په اوولسمه پېړۍ کې په اروپا کې کوم لاملونه د نورو هېوادونو په پر تله د فرانسې د سیاسي غوره والي سبب شول؟
۳- د انگلستان د هېواد عدالت غوښتنې د حقونو د لیکنې په هکله څه پوهیږئ؟
٤- د روسیې د ځواکمنولو لپاره د لوی پتر پروگرامونه څه وو؟



### له ټولگي څخه دباندې فعالیت

د معاصرو پیړیو او منځنیو پیړیو توپیرونه په خوکرښو کې ولیکئ او د ښوونځي په جریده کې یې و ځړوئ.

# د انګلستان صنعتي انقلاب

## د انګلستان صنعتي انقلاب نړۍ ته څرنګه بدلون راووست؟




د اتلسمې پیړۍ تر وروستیو پورې د تولید اصلي عامل د انسان مټ او د لاس ځواک و، او نورو عواملو ډېره کمزوري ونډه په تولید کې لرله. خو د دې پېړۍ په وروستیو کې د صنعتي انقلاب په رامنځته کېدو لومړی د اوبو محرکه ځواک او وروسته د بخار ځواک د تولید په خدمت کې ورکړای شو.

صنعتي انقلاب چې د انساني ځواک په بدل کې د ماشین د ځواک له کارولو څخه عبارت دی، لومړی له انګلستان څخه پیل شو او ورو، ورو نورو هېوادونو ته یې پراختیا ومونده، د بخار د ماشین په کشفولو سره د تولید بهیر ګړندی شو، د تولید لګښتونه را ټیټ شول او د عامې هوساینې کچه یې په صنعتي هېوادونو کې ډېره کړه.

د اروپایي هېوادونو په صنعتي کېدو یو لړ لاملونو لکه د کافي طبیعي زېرمو شتون،ارزانه انساني ځواک، ډېره مادي پانګه، کار پوهه ځواک، د دولت ملاتړ او د خرخلاو د بازار اړتیا پیدا شوه، او له هغه ځایه چې په دغو هېوادونو کې هغه ټول عوامل په لاس کې نه و، دولتونو په یو لړ استثماري او توسعه غوښتنې په اقداماتو لاس پورې کړ. له همدې امله صنعتي انقلاب په خپله د دوو اقتصادي- ټولنیزو پېښو د راپیداکېدو او پرمختیا لامل شو.

۱- په بهر کې د آسیایي او افریقایي ملتونو لوټول او د استعمار پراختیا.

۲- د هېواد په د ننه کې د کارګرانو څخه د ګټې اخیستنې او استثمار ډېروالی.

صنعتي انقلاب په انګلستان کې تر ټولو لومړی په درېو برخو کې رامنځته شو چې له اوبدلو، ډېرو سکاره او د اوسپنې ویلې کېدو. چې په پایله کې یې انګلستان په یوه صنعتي ځواک بدل کړ. په دې لړ کې یو شمېر کارخانې د لوړو دود کښونو او تور لوغړن لوګي په درلودو چې په هواکې تیتیده، د شنو او ښایسته کلو او بانډو ځای ونیوه چې. د دغو کارځایونو په

شاوخواکې د کوم پلان او نقشې پرته استوګنځي را منځته کیدل. دغه ښارونه ډیر چټل او ککړ و، او وړي او ستړي کارګران دې ته اړ و چې له دوولس ساعته سخت کار څخه وروسته په هغو کې آرام وکړي.

د صنعتي انقلاب پر مهال، هره نوې اختراع د دې سبب کېده چې نوي ماشینونه دې د یو شمېر کارګرانو پر ځای په کار پیل وکړي، او یو شمېر خلك بېکاره کړي. په پایله کې کارګران بیکاره شول، ماشینونه یې د ځان د بدمرغۍ مسؤول ګڼلو او ځینې وختونه یې ماشینونه ماتول. که څه هم وروسته په دې پوه شول چې ماشین کومه ګناه نلري بلکې نوی اقتصادي نظام د هغوی د بې وزلۍ او بې کارۍ مسؤول دي. نوو کار ځایونو ډېر شمېر پخواني لاسي صنایع او کوچنۍ فابریکې تسخیر کړلې او د کسب او پخواني لاسي صنایعو خاوندان د لویو فابریکو اجیر کارګران شول.

د صنعتي انقلاب په لومړیو کې د کارګرانو مزدوري ډېره لږه وه او کارګران د خپلو خېټو د مړولو لپاره دې ته اړ نه ول چې خپلې ښځې او ماشومان هم د کار لپاره هغو غیر صحي کار ځایونو ته بوځي.

د معدن کارګرانو ټوله ورځ د ډېرو سکرو د زیرمو په ژورو کې په کار کولو بوخت و او د شپې له خوا کورونو ته راتلل او بیا سهار وختي بېرته د معدن په لور روانیدل. ځینې وختونه یې تر څو میاشتو د ورځې روښنایي په سترګو نه لیده.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي او هره ډله دې په لاندې مسئلو له یو بل سره خبرې وکړي.

۱- د انګستان د صنعتي انقلاب پایلې څه وې. په ګوته یې کړئ.

۲- انقلاب یعنې څه؟ او صنعتي انقلاب څه معنا لري.



## پوښتنې

۱- د بخار ماشین په تولید کې څه بدلونونه را منځته کړل؟

۲- ولې کارګرانو د ماشینونو پر وړاندې غبرګون ښوده؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

صنعت به زموږ په هېواد کې څنګه پرمختګ وکړي. په دې هکله یو مطلب ولیکئ.

# د عثماني دولت رامنځته کېدل

په معاصرو پېړیو کې، چې اروپایانو د خپل نوي تمدن بنسټ ایښوده، او پوهې او نوې تکنالوژۍ په مرسته پر مخ تلل تر څو پر نړۍ لاس بري شي، په اسلامي هېوادونو کې څه تیرېدل؟ آیا هغوی هم د بدلون په فکر کې وو؟ آیا د نویو تمدني لاسته راوړنو څخه یې کومه ګټه پورته کړه؟ د استعمار له پیښې سره یې څنګه معامله وکړه؟ په معاصرو پېړیو کې د مهمو اسلامي دولتونو له ډلې څخه یو هم د عثماني دولت و چې په دغه لوست کې به ور سره پېژندګلوي پیداکړئ.

د سلجوقي ترکانو بریا د ملازګرد په جګړه کې، چې د الپ ارسلان او د ختیځ روم د امپراتور تر منځ پیښه شوه، څو پایلې یې په څنګ کې لرلې: په کوچنۍ آسیا کې لومړی د اسلام د دین خپرېدل د مسلمانانو او مسیحیانو تر منځ دوه سوه کلنې صلیبي جګړې یې له مهمو پایلو څخه دي. په تېره بیا، د ترکي مسلمانانو د قبایلو په کوچېدو سره د ایران له ختیځو سیمو څخه د کوچنۍ آسیا په لور، په دغه سیمه کې په ورو، ورو سیمه ییز کوچني دولتونه رامنځته شول چې د خپل پایښت او پراختیا لپاره له خپلو مسیحي ګاونډیانو سره جنګیدل. د دغو قبایلوله ډلې څخه یوه پیژندل شوې قبیله، دقایې قبیله وه چې په انقره او د هغه په شاوخوا کې میشت شول. د دغې قبیلې مشر ارطغرول و چې خپل ځواک ته یې پراختیا ورکړه. له هغه وروسته یې زوی عثمان په ۶۹۹ قمري کال کې یو دولت رامنځته کړ چې د ده په نوم(عثماني) یاد شو. دغه عثماني دولت چې د شلمې پېړیو تر لومړیو پورې دوام وکړ، د ختیځې نړۍ وروستنۍ ځواکمنه امپراتوري وه، چې نوم او آوازه یې د اروپایانو لپاره د ویرې سبب ګرځیدلی و، نو له همدې امله یې د دغه دولت د له منځه وړلو لپاره ډېرې هڅې وکړې.

عثماني ترکانو د خپل قلمرو د پراختیا او دخپل ځواک د غښتلتیا لپاره دوه مهم پوځي ځواکونه منځ ته راوړل: یو یې عثمانلي لښکر و او بل یې یني چري، د عثماني دولت د اصلي ځواکونو څخه شمېرل کېده چې د ترکي قبایلو او نظامي ملاتړو څخه را منځته کیده، او د خپلو خدمتونو په بدل کې یې ځمکه لاسته راوړله او د غنیمتونو څخه یې ګټه پورته کوله. خو دیني چرې مسیحي مسلمان شوي ځوانان وو چې د هغوی ونډه د عثماني پاچا ساتنه وه او د خپلو خدمتونو په بدل کې یې پیسې ترلاسه کولې چې د دېرشو کلونو له خدمت څخه وروسته هغوی ته ځمکه ورکول کېده.

## عثماني پاچاهان

د عثماني پاچایانو تر منځ څو تنه دنړیوال شهرت څخه برخمن وو:

### ۱ - سلطان محمد فاتح

سلطان محمد د عثماني پاچایانو تر منځ ډېر نامتو پاچا و، نوموړی وکولای شو چې د بیزانس د امپراتورۍ(ختیځ روم) زرکلن سیاسي ژوند ته د پای ټکی کېږدي. د هغه ځلانده او نامتو فتحه د قسطنطنیې(د

کستانتین ښار) فتحه او د ختیځ روم د امپراتورۍ پلازمېنه وه، چې له هغه وروسته د اسلامبول ( د اسلام ښار) په نامه و نومول شو او سلطان محمد د فاتح لقب تر لاسه کړ. دغه فتحه او سوبه دنړۍ په تاریخ کې د ډېرو بدلونونو سرچینه شوه او د اروپا په تاریخ کې د نویو پېړیو د پیل په توګه وپېژندل شو.

## ۲- سلطان سلیم

دغه پاچا چې د شاه اسماعیل صفوي معاصر و په خپلو بریدونو سره د ایران پر پولو یې وکولای شول چې د چالدران په جګړه کې په (۹۲۰ق) کا ل کې صفوي لښکرو ته د هغوی د توپخونې د ځواک او اورلړونکو وسلو سره ماتې ورکړي، هغه عراق او شام هم فتح کړل، او د مصر په لور په لښکر کښۍ کې یې ډېر هېوادونه له منځه یوړل او د مصري عباسیانو حاکمیت او ځواک ته یې د پای ټکی کېښوده. له هغه وروسته یې د مکې مکرمې اداره یې په لاس کې ونیوله، ځان یې د خلیفه په توګه ونوماوه او پر ټولو مسلمانانو د حکومت کولو غوښتونکی شو.

## ۳- سلطان سلیمان قانوني(لوی سلیمان)

په ۱۶ م/۱۰ قمری کال کې سلطان سلیمان د سلطان سلیم زوی د عثماني پاچاهانو له ډلې څخه پېژندل شوی پاچا و. د هغه د پاچاهۍ پر مها ل د عثماني امپراتورۍ قلمرو زیاته پراختیا موندده، لکه څنګه چې عثماني لښکرو د وین ښار د اوسني اتریش پلازمینه هم د خپلې محاصرې لاندې راووسته. د عثماني دولت سمندري ځواکونه په دې دورې کې په مدیترانه او د هند په سمندري لارو کې شتون درلود. همدغه ځواک و چې په (۱۵۳۸م) کال کې د خیرالدین په مشرۍ د اروپایي متحدینو سمندري ځواکونو ته هم ماته ورکړه. ترکانو سلیمان د دې لپاره چې منظم اداري جوړښتونه او مدني قوانین یې رامنځته کړل د (سلیمان قانوني) په نامه ونومولو، او اروپایانو د هغه د امپراتورۍ د لوېوالي او ځواک له امله هغه ته د(لوی سلیمان) نوم ورکړ.


سلطان سلیمان د عثمانیانو پیاوړی امپراطور

## عثماني امپراتوري ولې کمزورې شوه؟

۱۷ ز / ۱۱ق پېړۍ کولای شو د عثماني دولت د زوا ل د پیل دوره وګڼو. دغه زوا ل چې د اروپا د پر مختګ او د لویدیځ د بدلون له دورې سره سمون خوري، د دې لامل شو چې عثماني امپراتورۍ خپل ټول زیار د خپل سیاسي دریځ او موقعیت په ساتنه ولګوي. ځانګړي لاملونه چې د عثماني دولت د وروسته پاتې کېدو او زوال لامل شو، عبارت دي له:

۱- د عثماني پاچاهانو فساد او وخت تیرول.

۲- د هر ډول سیاسي او ټولنیزو اصلاحاتو د پلي کولو څخه ډډه کول، چې د اشرافو او درباریانو ګټې یې له خطر سره مخامخ کولې.

۳- د فتوحاتو ودرول چې د عثماني دولت د لوی پوځ د وزګارتیا لامل شو، او له هغه وروسته پوځیانو چې ډېر یې د ځمکو خاوندان وو، پر کلیوالو یې ظلم او تېریو ته زور ورکړ، او په سیاسي چارو کې یې لاس وهنو ډېرې ستونزې را منځته کړې.
٤- د صفوي دولت سره د عثماني دولت مذهبي شخړې، نه یوازې دا چې د هغه دولت د کمزورتیا لامل شوې، بلکې د مسلمانانو د ټولنیز انحطاط سبب هم شو، دا په داسې حا ل کې وو چې عثمانیانو د خپل قلمرو میشتو مسیحي اقلیتونوته ډېره سیاسي او مذهبي خپلواکي ورکړې وه.
په ۱۸ ز/۱۲ ق پېړیو کې د عثماني دولت کمزورتیا ښکاره شوه. د روسیې او اتریش دوو هېوادونو عثمانیان د بالکان له سیمې او د تورې بحیرې د شمال څخه په شا وتمبول. په ختیځ اړخ کې هم د افشاریه د دولت په رامنځته کېدو د ایران لښکرو د نادر افشار په مشرۍ د عثمانیانو پروړاندې را پاڅیدل او سخت زیانونه یې هغوی ته ور واړول.
د نولسمې پیړۍ په لړ کې، عثماني امپراتورۍ د خپل قلمرو د پراختیا او د خپل ځلانده تاریخ باوجود، له د ننه کمزورۍ شوی و، که څه هم بیا وروسته د هغه دولت د واک د ژوندي کولو لپاره هڅې وشوې، او رغنده پروګرامونه هم پلي کړای شو، خو په دې ونوانېدل چې د هغه دولت د زوال بهیر د یو څه وخت لپاره وځنډوي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي او هره ډله دې په لاندې موضوعاتو له یو بل سره خبرې وکړي او پایلې دې یو بل ته ووایي.
- ستاسو په اند ولې اروپایان د عثماني پاچا له خوا د ختیځ روم پوځي ماته د اروپا په تاریخ کې د نویو پیړیو پیل وګڼلو؟
- ستاسو په اند د عثماني دولت مشران، د نسکورېدو د عواملو څخه د خلاصون لپاره کومې هڅې کولای شوې چې تر سره یې کړي؟

## پوښتنې



۱- د عثماني دولت د کمزورتیا لاملونه څه وو؟
۲- د عثماني پاچاهانو نومونه واخلئ؟
۳- عثماني دولت څرنګه منځته راغی؟



## له ټولګي څخه دباندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د عثماني امپراتورۍ د واکمنۍ سیمې په اړه معلومات راټول او د اوسنۍ ترکیې سره دې پرتله کړئ.

# د امریکا د متحده ایالاتو د خپلواکۍ انقلاب

په دې لوست کې، امریکا د متحده ایالاتو د خپلواکۍ له انقلاب سره او همدارنګه د امریکا د خپلواکۍ د اعلامیې له موادو سره آشنایي.

جغرافیایي اکتشافات، په ځانګړې توګه د امریکا د وچې کشف، د شتمنیو نوې نړۍ یې د اروپایي هېوادونو پر مخ پرانستله، یو شمېر زیاد اروپایي هېوادونه چې د مذهبي محدودیتونو او کورنۍ جګړو څخه په تنګ راغلي وو، د ښه ژوندانه لپاره د یوه نوي ځای پلټنه، د طبیعي امکاناتو شتمني او د سرو زرو لپاره امریکا ته مهاجرت وکړ، د دې کډوالو ډېره برخه انګلیستان وو چې د اطلس اقیانوس په لویدیځو سواحلو کې دیارلس ایالته مهاجرمیشتو جوړاوه او له همدې امله د دې خاورې یوه برخه یې د نیوانګلند ( نوې انګلیستان) په نامه یاداوه. نوې وچې ته د اروپایانو یرغلو په لړ کې د هغه ځای بومي وګړي چې سور پوستکي یا د اروپایانو په جګړو کې ووژل شول او یاهم نورو سیموته کډوال شول.

د ۱۸ م پېړۍ په پیل کې په امریکا کې د اروپایانو ترولکې لاندې ځایونه

د امریکا خاوره د سرو زرو او نقرې، د ډېرو زیاتو ځنګلونو او کرنیزو ځمکو درلودونکې و. سواحل یې د کبانو نیولو او د بیړۍ چلولو لپاره مناسب او د اقتصادي ودې او پراختیا لپاره زمینه برابره وه. د انګلیستان دولت د خپل واک لاندې سیمې یې د کرنیزو تولیداتو مرکز او د خپلو صنعتي محصولاتو د پیرودلو لپاره ټاکلې وې، په دغه مهال کې د نوې مالیاتو وضع د کډوالو نیوکې یې رامنځ ته کړې، په دې مهال کې د فرانسې دولت چې د انګلیستان په جګړو کې ماتې خوړلې وې او مستعمرات یې هم په امریکا کې له لاسه ورکړې و، له کډوالو څخه یې ملاتړ وکړ. په پایله کې کډوال په دې وتوانیدل چې د جورج واشنګټن په مشرۍ د انګریزانو ځواکونو ته ماته ورکړې. د دغې ماتې په تعقیب د کډوالو

دیارلس ایالاتو د خپلواکۍ اعلام وکړ، او خپله خاوره یې د امریکا د متحده ایالاتو په نوم ونوموله، او په (۱۷۷۶م)کال کې جورج واشنګټن یې هم د امریکا د لومړي ولسمشر په توګه وټاکه.

## د امریکا د خپلواکۍ اعلامیه

په (۱۷۷۶م) کال کې د امریکا له روښنفکرانو څخه په نامه د توماس پین د (سلیم عقل) په نامه یوه مقاله ولیکه چې ډېر پلویان یې پیداکړه او د هغه (۱۰۰ زره) نسخې په امریکا کې وپیرودل شوې. ناڅاپه د توماس پین دغه فکر د امریکا د خپلواکۍ په اعلامیه کې د (۱۷۷۶م) کا ل د جنورۍ په څلورمه ورځ کې خپور شو چې د خپلواکۍ د اعلامیې د اصولو برخه یې داسې ده:

۱- ټول خلک یو د بل سره برابر دي او د یو شان حقونو درلودونکي دي.

۲- ټول خلک د ژوند او د خپلواکۍ د حق درلودونکي دي.

۳- حکومت د خلکو د حقونو د تآمینولو لپاره منځته راغلی دی. په داسې حا ل کې که چیرې حکومت د خلکو د حقونو د تامینولو توان ونلري دا د خلکو طبیعي او قانوني حق دی چې هغه لرې کړي او د خپلې ټاکنې حکومت منځ ته راوړي.

وروسته له خپلواکۍ، د امریکا خلک د لویدیځ په لور له پرمختګ سره، د هغه ځای زیاد شمیر سور پوستکی یې له منځه یوړل د هغوی پراخه ځمکی یې لاسته راوړې، او د امریکا د ایالاتو شمیر له دیارلسو څخه پنځوسو ایالاتو ته ورسیده. په دې ترتیب د متحده ایالاتو هېواد چې د اطلس سمندر د سواحلو څخه پیل کیږي تر آرام سمندر سواحلوته پراخوالی پیداکړ.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او د لاندنیو مطالبو په هکله دې یو تر بله مشوره وکړي، وروسته د ډلې یو غړی دې پایله نورو ته ووایي.

- ټول خلک یو بل سره برابر دی یعنې څه؟
- ټول خلک د ژوندانه د حق در لودونکي دي یعنې څه؟
- حکومت د خلکو د حقونو د تأمینولو په منظور منځ ته راغلی دی یعنې څه؟



### پوښتنې

۱- د امریکا د متحده ایالاتو ځمکې د څه ډول معادنو درلودونکي دي؟

۲- نیو انګلند د امریکا د متحده ایالاتو کومې برخې احاطه کړې دي؟

۳- د اروپایانو د هجوم دلیل د امریکا متحده پر ایالاتو باندې څه وو؟



### له ټولګي څخه دباندې فعالیت

د خپلواکۍ په هکله یو مطلب ولیکئ او په راتلونکي لوست کې په ټولګی کې ولولئ.

# د امریکا د متحده ایالاتو د پرمختګ او لوړتیا لارې چارې

امریکا په اوسنی مهال کې د یو شمیر سترو ځواکونو څخه پیژندل کیږي، په پنځلسمې میلادي پیړۍ کې د اروپایي کډوالو په ورتللو سره دغه هېواد له بنسټیزو بدلونونو سره مخ شو، د دغه هېواد پرمختګ او اعتلا د همدغو شرطونو له زمینو څخه رامنځ ته شوی چې په دې لوست کې به یې له ځینو سره آشنا شئ.

د امریکا متحده ایالات یو لوی او پراخه هېواد دي، چې د صنعت درې اصلی مادي (سکاره،اوسپنه او نفت) په کې ډېر زیات وو، په دغه هېوا کې ګن ځړوبي او له اوبو ډګ سیندونه هم موجود و، چې له هغو څخه د برښنا د تولید ځواک په ډېره لوړه پیمانه جوړیده. د امریکا د متحده ایالاتو نفوس د خاورې د پراخوالی په کچه لږ دي، او هر څوک کولای شي چې د خپل ځان لپاره د کار او فعالیت ډګر پیدا کړي.

د امریکا له کشفولو سره په(۱۴۹۲م) کال کې دنړۍ له ګوټ ګوټ څخه په تېره بیا له اروپا څخه امریکاته زیات کډوال ورغلل، او بېلا بیلو اروپایي ډلو هغو ځمکو ته مهاجرت پیل وکړ او یو تر بله سره ګډ شول، او د هغوی له اختلاط څخه یو نوی ملت د امریکایي ملت په نامه راجوړ شو. هغوی د یوه واحد او یوشان میتود سره زده کړه کوله. همدارنګه د هغو کډوالو په منځ کې چې له اروپا څخه امریکا ته ولاړل یو شمېر پوهان او عالمان هم وو، او هغوی دا فرصت پیدا کړ تر څو د خپلې علمي زده کړې او کړنې لپاره مناسب ځای چمتو او مهیا کړي. د بېلګې په توګه یو بریتانوی پوهاند د سومایل سلاتر ( somail slatter) په نامه د لومړي ځل لپاره په (۱۷۹۰م)کال کې په هغه هېواد کې(د ټکر توټې) جوړولو د فاربریکې بنسټ کېښود، په امریکا کې د نوو صنایعو د ودې چټکتیا په هغه کچه وه چې په لنډه موده کې هغه هېواد له بریتانیا څخه هم زیات پرمختګ وکړ.

د تلګراف او تېلیفون د کرښې رامنځ ته کیدل او د اوسپینی دلارې جوړېدل د کالیو د وړلو او راوړو لپاره چې د امریکا ختیځ او لویدیځ یې یو تر بله ونښلول، او د بخار له بیړیو څخه کار اخېستنه په اقتصادی پر مختګ کې ډېر ګټور وو. همدا رنګه د امریکا د پرمختګ بله لاره په (۱۸۳۸م) کال کې د مریتوب نظام له منځه وړل، د ختیځې امریکې آزادي تر لاسه کول ځرنګه چې د مریتوب نظام له منځه وړلو غورځنګ چې په امریکا کې منځته راغلی و، ورو ورو د خپلواکۍ غوښتونکو له عقایدو او مفکورو څخه یې سر راپورته کړ د امریکا د مریتوب ضد غورځنګ چې د ویلیام لوید ګارسین (william lwid garsen) په واسطه (۱۸۰۵- ۱۸۷۹م) کلونو کې رامنځته شوی و، تر پنځو کلو پورې یې ۲۵۰۰۰۰ غړي پیداکړل.

د امریکا متحده ایالاتو د قضاییه قوې چې ریاست یې جان مارشال له (۱۸۰۱ – ۱۸۳۵م) کالو پورې په غاړه در لود، د امریکا د ملي یووالي لپاره یو بل پیاوړی ځواک و. همدارنګه هغه دموکراتیکې نظرېې چې د خلکو او پرګنو سیاسی قدرت یې زیاتولو، او د لومړي ځل لپاره د انګلستان د کورنیو

جګړو د اوولسمې پېړۍ په ٤٠ لسيزه کې را منځته شوې و، د امريکايانو غوږونو ته هم راورسيدې، که څه هم داسې نظريې څه بريالۍ نه شوې خو د هغو له پيل څخه د انساني اړيکو د پرمختګ لپاره يې لاره هواره کړه. پورتنيو اندونو او نظريو په سياسی برابريو او د خلکو په اراده باندې يې ټينګار درلود.

په اوسني عصر کې متحده ايالاتو د سالمې ادارې د رامنځ ته کېدو سره په نوو شرايطو کې د دموکراسي د منلو امکانات پيدا کړل. خو په امريکا کې دموکراسي هيڅ کله هم آسانه وده ونکړه. بلکې د امريکا د دموکراسۍ له نظام سره د هغو خلکو له خوا مخالفت وشو چې د امريکا د دموکراسۍ په نظام کې د ټيټو طبقو له شمول سره مخالفتونه درلول، او هغه يې ردول خو د وخت په تېريدو سره نوموړې مخالفتونه کم شول.

همدارنګه د عرضې او تقاضا غوښتنې پر بنسټ د امريکا د ځانګړو شرايطو په پام کې نيولو سره د آزاد بازار د اقتصادي سيستم په اساسې له معقولو اقتصادی نمونو څخه کار اخيسته، د سالم رقابت را منځته کول او همدارنګه د اداري، سياسي او فرهنګي لاروچارو سمون (اصلاحات) هغه نورې زمينې وې چې د امريکا د متحده ايالاتو د ودې او پر مختګ لامل وګرځيد.



### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوه ډلو وويشل شي لومړۍ ډله دې د کډوالو د فعاليت له څرنګوالي سره په بېلابېلو برخو کې او د امريکا د صنايعو د پر مختګ په اړه خبرې وکړي او دويمه ډله دې د جان مارشال او په امريکا کې دموکراتيک فعاليتونو په اړه خبرې اترې وکړي او پايله دې بيا د هرې ډلې استازی نوروته وړاندې کړي.



### پوښتنې

١- ولې کډوال د نړۍ له هر ګوټ څخه امريکا ته ور کډه شول؟

٢- په امريکا کې د مريتوب د نظام له منځه وړل د چا په واسطه او څرنګه رامنځته شول؟

٣- جان مارشال څوک و؟

٤- دموکراتيکو اندونو (ولسواکي) څرنګه امريکا ته لاره پيدا کړه؟



### له ټولګي څخه دباندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د ښوونکي د لار ښوونو څخه په ګټې اخيستنې سره د امريکا د متحده ايالاتو د پر مختګ او پراختيا په اړه يو مطلب وليکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې ټولګيوالو ته وړاندې کړي.